د قرآن او سنت په رڼا کښې

خپرونکي

مکتبه رشیدیه سرکی روډ کوټه

دقرآن اواحاديثوپه رڼاکې
مکمل اومدلل

# دروژې مسئلې

مؤلف
مولنامحمدرفعت (قاسمي)

پښتوژباړه
عبدالملک «حصيف»


خپروونکی
مکتبه رشيديه سرکی روډ کوټه

دکتاب پېژندنه :-

| | |
|---|---|
| دکتاب نوم | دروژې مسئلې |
| مؤلف | مولانامحمدرفعت (قاسمی) |
| پښتوژباړه | عبدالملک «حصیف» |
| دکمپوزاودترجمې چارې | دنورالقرآن ادارې دژباړې اوکمپوزځانګه |
| کمپوزر | عبد الله (عزام) |
| تصحیح | دنورالقرآن اداری خادم ابوخالدمولوی عبدالاحد(مجروح) |
| ډیزائن اوسمون | ابوخالد |
| خپروونکی | رشیدیه کتابخانه سرکی روډ کوټه |
| چاپوونکی | محمدساجد |
| لومړی چاپ | ۱۱۰۰ټوکه |
| دوهم چاپ | ۱۱۰۰ټوکه |
| چاپ کال | ۲۰۰۸ میلادی دمئ میاشت |
| چاپ ځای | لاهور |

# انتساب

دهغو ټولو روژه لرونکوپه نوم
چي يوائحي اويوائحي يې دالله جل جلاله لپاره
روژه نيولې وي

(رفعت قاسمي)

# دمضامينوفهرس



## دوهم باب

# دريم باب

# څلورم باب

# پنځم باب

## شپږم باب

## اووم باب

# دښځو مسئلې

## لسم باب

### دماشومانو مسئلې

# يوولسم باب

# دوولسم باب

# څوارلسم باب

## پنځلسم باب



## شپاړسم باب

# اوولسم باب



# اتلسم باب



# نولسم باب



# شلم باب

## یوویشتم باب



## دوویشتم باب

# درویشتم باب

## واخردعوانا ان الحمدلله رب العلمین

## ددعامحتاج «ابوخالد»

بسم الله الرحمن الرحيم

## دکتاب په اړوند دمترجم څو کرښي

دلوی خدای تعالی داحکاماتو له زرین ځنځیر نه یوه کړۍ درمضان المبارك دمیاشتي روژه ده ، رمضان المبارك چي دقمري کال نهمه میاشت ده ، درحمتونو ، سعادتونو ، برکتونو اومغفرتونو نایابه ګېډۍ ، اوځمکي ته دقران کریم اوشب قدر دشپې په څېر دلویو تحفو راوړونکې ده ، چي قیوم خدای تعالی خپلو بندګانو ته د(شهر الرمضان الذي انزل فيه القرآن ) په مبارکو تورو ستایلې اوور پېژندلې ده ...... روژه ! یعني دپاك خدای تعالی له طرفه هغه عزتمنده اوویاړمنده فریضه چي پاك خدای تعالی به دهغې اجر اوثواب بنده ته پخپله ورکوي همدارنګه روژه دپاك خدای تعالی له طرفه بندګانو ته هغه مېلمستیا ده چي کله هم دبل چاله خواڅخه کېدای نشي ، دروژې هره لحظه په عبادت کي شمېرله کېږي ، دروژتي لپاره هره هره لحظه جنت ښائسته کېږي ، اوپه دغه میاشت کي دهغه له غولولو څخه شیطانان داور په ځنځیرونو تړل کیږي ، داچي پاك خدای تعالی ډیر زیات حکیم اودهرڅه له خیر اوشر څخه ښه خبر دی ، نو ځکه که تاسو دطب له ډاکټرانو ، له روغتیا پالانو ، داخلاقي بډایني له پلویانو ، دباطن له ماهرینو (اولیا ء کرامو ) اونورو څخه دروژې دګټو پوښتنه وکړي ، نو هریو له دغو به یې په خپله رشته کي درته بېشماره ګټي ، وښايي ، همدارنګه که دحدیثو

دکتابونو ورقي واړوئ نو دروژې دفضيلتونو په ليدلو سره به تاسوحيران شي ، ددارالعلوم ديوبند دقدر من اوعزتمن استاذ فقيه العصر مولانامحمد رفعت قاسمي ( رحمة الله عليه) د(۱۸) کريځ تصنيفي ځنځير څخه دغه ( دروژې مسئلې ) نومي کتاب دهر مسلمان روژتي لپاره دومره يوه قيمتي تحفه ده چي (انشاء الله ) ترډيره حده به دخواصو اوعوامو لپاره وروستو له مطالعې ددغه کتابه نورداسي څه پاته نشي چي هغه ورپسي دنوروکتابونو دپاڼو اړولو ته اړشي ، زما په نظر دغه کتاب به په دغه وړوکي جسامت دروژې په اړوند ددومره پوښتنو ځوابونه ووايې چي حدد کفايت به پکښي پټ وي .
دغه کتاب په ډېرو علمي بحرونو کي غوټه وهلې ده ، اوهلته داعلى مقام دترلاسه کولو دليل يې له خپل ځان سره دهغوڅو پيل شوې ملغلري راوړې دي ، لکه دارالعلوم ديوبند دمشر اومفتي حضرت مولانا نظام الدين ( رحمه الله عليه) تقريظ ، ددرالعلوم دمفتي حضرت مولانا ظفېرالدين الاعظمی ( زيد مجدهم ) تقريظ ، اوددارالعلوم دمفتي حضرت مولانا مفتي حبيب الرحمن (خيرابادي) تقريظ ، خوپه کمال دتاسف سره بايد يادونه وکړم چي مونږ دکتاب دحجمي زيادت دمخ نوي له امله دهغو مبارکانودمفصلو وينا ګانو پرځای صرف دهغو په يادبسنه وکړه .

## پښتو ژبې ته دوړاندي شوې ډالۍ خوږو کتونکو

داچي په کويټه کي مېشتي ( مکتبه نورالقران ) دتأ ليف اوترجمي ادارې دخپل سپېڅلي اسلامي احساس له مخي دمولانا محمد

رفعت قاسمي ، اونورو کتابونو دژباړې اوپسوللو لپاره کلك هوډ ښوولی دی ، نودټولو لپاره یوښه زیری دی په داسې یوه سخته ناامیدي کي چي زما یوه پښتو ژباړه بغیر له اجازي دمؤلف اومترجم له سختو غلطیو او زیادت اوکمبود سره په داسي ډول له چاپه راووتله چي مايې چاته دتحفې ورکولو جرآت نشوای کولای ددغي اداري خدمتونه زما مخي ته کېښودل شول چي ددوئ له ډير زيار ، ښه دقت اوډيزائن څخه متاثر کېدو زما په روح اوزړه کي دبیا نوښت ریښې وغوړولې.

باید یادونه وکړم چي دترجمې په ټولو اړخونو کي مو درنه هیڅ ډول قدرت سپمولی نه دی ، خوکه سربېره په هغه مود څه قصور مشاهده وکړه ، نو دازما کم فهمي وبولئ اولطفا له هغې څخه مونږ ته خبر راکړئ اوپه اخبر کي موله ټولو کتونکو څخه هیله داده چي دروژې په دعا کي ردېدل ډير کم وي ، نو دشفقت اومهرباني له مخي تاسو په دغه کتاب کي ټول برخه اخستونکي درسره په خپلو دعاګانو کي یاد کړئ.

ضعیف بنده عبدالملك "حصیف"

۱۴۲۷هج ۲۳ رجب المرجب

## دتالیف سبب

نحمده ونصلي علی رسوله الکریم ! ماسره له کمبوده دخپلی عملی پانگي ، اوسره له خپلی کم علمی اوبی عملی صرف دخپلو استادانو دحکم دعملی کولو پخاطر په دغه مهم عنوان د« روژي مسائل » باندی دغه خدمت ترسره کړ چی خاص دپاك خدای تعالی دمهربانی اواحسان اودلویانو ددوعاگانو نتیجه وه ، پخواتردې مي هم خپل دوه کتابونه « مسائل تراویح » او «مسائل اداب ملاقات » وروستوله ترتیب کولو څخه دخپلو استاذانو مخی ته کښیښودل چی هغوی دخوښولو ترڅنگ دتصدیق په کلمو سره ونازول ، اوزما دهمت په زیاتولو سره ئې زه ددغه مهم کار لپاره وتاکلم ، داچی مابه دغه گران خدمت ترکومي اندازې سم ترسره کړی وي ، نو نشم ویلای ، البته باید ووایم چی مادخپل وس سره سم دورځنیو مسئلوپه راتولو لو کی ترکومه چی کیدای سوای کوشش کړی وی .

ربنا تقبل منا انك انت السمیع العلیم

محمدرفعت قاسمی

مدرس دارالعلوم دیوبند

## دروژې فضيلت

بسم الله الرحمن الرحيم

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُواْ كُتِبَ عَلَيْكُمُ الصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ (سورة البقره اية نمبر ۱۸۲)

ژباړه : اي هغو كسانو چي ايمان موراوړي دي فرض كړل شوي ده پر تاسو روژه ساتل لكه چي فرض كړل شوي وه پر هغو كسانو چي مخكې له تاسو څخه وو، ددې لپاره چي تاسو پر هيز ګاران شئ.

### د(صيام) دلفظ څيړنه

دصيام دلفظ لغوي معنى دځه امر څخه لري اوسيدل دي ( يعني كه ځوك دخوراك او وينا څخه ليري پاته شي اويا خوراك ږغيدل پريږدي نوهغه ته په لغت كې صائم ويل كيږي ) چې په قران كريم كي يې مثال په دې ډول دى (إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمَنِ صَوْمًا)

اوپه اسلامي شريعت كي ( الصوم ) يا روژه هغه ده چي انسان له سهار څخه ترماښام پوري دخوراك ، څښاك اودنفسي غوښتنو له ترسره كولو څخه دروژې په نيت ليري واوسي ، او ورځ له راختلو دصبح صادق ( رښتونې سپيدې ) څخه پيل كيږي بيا تر لويدو دلمر پوري ، اوچاچي دومره وخت خوراك ، څښاك اودنفسي غوښتنو په لاره تګ ونه كړ نوهغه روژتي دى اوګويا دروژې وجود جوړ شو : نوځرنګه چي دروغتيا پالني لپاره انسان دډيرو شيانو څخه پرهيز كوې همدارنګه په روژه كي هم پرهيز ونه شته ، روژه نيول داسلام له

ارکانو څخه یومهم رکن دی که څوك د رمضان د میاشتی روژه نه نیسي نو هغه نیم مسلمان جوړیږي ، د رمضان المبارك په میاشت کي روژه نیول پرهر بالغ ، هوښیار ، سړي اوښځه باندي ( چی د روژې نیولو قدرت ولري ) فرض عین ده ، ترڅو چی کوم عذر پیښ شوی نه وي نو د روژې ماتول صحیح نه دی که څوك د روژې نذر ومني نو هغه روژې ورباندي فرض کیږی ، همدارنګه د کفارې اوقضا روژې هم فرض دي ، او نوري روژې ټولي نفل دي په نیولو یې ثواب ورکول کیږي اوپه نه نیولو سره یې ګناه نشته مګر د کوچنی اولوي اختر اودلوي اختر څخه وروستو درې ورځي د روژې نیول حرام دي.

## د روژې تاریخ

روژه د حضرت دآدم علیه السلام له زمانې څخه راشروع شوې ده ، څرنګه چی دیوروایت نه څرګندیږي ، چی د حضرت ادم ﷺ په زمانه کي د( ایام بیض ) یعني د هري میاشتی د دیارلسم ، څوارلم اوپنځلسم په ورځ روژې فرض وې ، یهودانو اونصرانیانو هم روژې نیولې ، دهندوانو د دهرم بده په مذهب کي هم روژه د مذهب یورکن دی اوپه بادسیانو کي هم روژه یوبهترین عبادت بلل کیږي لنډه داچی د دنیا په هر مذهب کي د روژې فضیلت او اهمیت پیدا کیږي ، د حضرت آدم علیه السلام نه رانیولې بیا ترخاتم الانبیاء حضرت محمد ﷺ پوري په هرقوم اوهرملت کي روژه په یو شکل نه یو شکل موجوده وه .

## روژه څه وخت فرض شوه ؟

نبی کریم ﷺ وروستو له دې چې په پیغمبری مبعوث شو (۱۳) کاله په خپل شهر مکه معظمه کې خلګو ته دپاك خدای ﷻ حکم بیاناؤ اوتبلیغ به یې کاوو اوتردیره وخته پورې بغیر له ایمان راوړلو اوبت پرستې پریښودلو څخه بل حکم نه ؤنازل شوی

بیا کرار کرار (ورو ، ورو) دپاك خدای ﷻ دحکمونو راتلل پیل شول داسلام په ارکانو کې لمړی لمونځ فرض شو اوبیا وروستو له هغه چې سرورکائنات ﷺ له مکې معظمې څخه هجرت وکړ اومدینې منورې ته ورسیدو ، نوهلته دپاك خدای ﷻ ډیر حکمونه نازل شوو چې دهغو له جملې څخه یوه هم روژه وه ، څرنګه چې دروژې تکلیف په نفس باندی سخت او دروند وې نوځکه دفرضیت په لیکه کې ورته دریم ځای ورکړل شوی دی اسلام داحکامو دفرضیت په لړ کې دغه کړنه غوره کړیده چې اول یې لمونځ چې یوڅه نرم عبادت دې فرض کړی اوبیا ورپسی زکوة اوپه دریم وار کې یې روژه فرض ګرزولې ده ، په اول کې دعاشورا یا دمحرم الحرام دمیاشتی په لسمه نیټه روژه بیا چې کله درمضان المبارك روژه فرض شوه نودعاشورا دروژې فرضیت ختم شو دروژې دفرضیت په پیل کې دومره اسانتیاموجوده وه چې که چاغوښتې وای چې روژه ونیسې نو روژه به یې نیوله ، اوکه چا غوښتې وای چې دروژې په بدله کې کوم مسکین ته یوه ورځ خوراك ورکړې نوهمدارنګه یې کولای شوای ، پاك خدای ﷻ دخپلو بندګانو دکمزوریو په نظر کې نیولو سره کرار

کرار (ورو ، ورو) دروژې نیولو عادت وفرمایلو ، کله چی څه زمانه تیره شو اوخلګ دروژې نیولو سره یوڅه عادت شول نوله مریضانو اوعذر لرونکو خلګو بغیر ، نورو ټولو څخه دغه اختیار واخستل شو اوله هجرت څخه یو نیم کال وروستو په هجری کال (۲) دشعبان المبارك په لسم په مدینه منوره کي درمضان المبارك دروژو دفرضوالي حکم نازل شو اوبغیر له دغې میاشتی بل وخت دروژې فرضیت هیڅ پاته نشو ، درمضان المبارك دمیاشتی دروژې فرضیت له کتاب ، سنت ، اجماع ټولو څخه ثابت دی

(فقه علی المذاهب الاربعه ج ۱ ص ۸۷۵ ، زاد المعاد ج ۱ ص ۱۶۰)

## دروژې فلسفه (حکمت)

دایوڅرګند حقیقت دی چي انسان بهترین دټولو مخلوقاتو دی ، دهغه داوچت مقام ، عظمت ، واکمني اوقدرت په مخکي ټول کائینات سرټیټي دي مګر په دې خبره ډیر کم خلګ پوهیږي چي دانسان ددغه لوړ شان ،عزت اوتوانمندي سبب څه دي ؟

دانسان لپاره ددغه لوړشان اوعزت دترلاسه کولو سبب دادی چي هغه دسرکښه نفس په خپل واك کي راوستلو سره په خپلو بدوغوښتنو (خواهشاتو) باندي بریالی کیږي ، اوبیا دپاك خدای ﷻ فرائض پرځای کوي اودهغه عبادت اوبندګي کوي اودخپل پیدائښت مقصد ترسره کوي دپاك خدای تعالی پیژندنه اودهغه درضا دترلاسه کولولپاره جستجو دهغه اولینه اوترټولو مهمه فریضه ده ، کوم انسان چي دبندګي له دغه فرضیت څخه غافل اوله

هغه سره ناآشنا وي نوهغه بدقسمته اوبي برخي دي دغه شی خدای
تعالی په داسی ډول فرمایلی دی قَدْ أَفْلَحَ مَن تَزَكَّى يعنی چاچي خپل
نفس پاك كړو نوهغه خلاصون وموندلو اوچاچي داسي ونكړل نوهغه
خپل ځان تباه كړ له دغه فرمان مبارك نه داځرګنديږي چي شريف ،
عزتمند اونيكبخت انسان هغه دي چي په خپل نفس يې پوره كنټرول
ولرلو اوهغه يې پاك جوړ كړ ، اودنفس تر واك لاندي راوستلو لپاره
ددريو شيانو ضرورت دی ، اول داچي نفس دټولو شهوتونو
اوخوندونو څخه راوګرزول شي ځكه چي كله يو سركښ آس ته وابښه
ورانه چوي نوبيا كولای شی هغه تابع كړئ په هم دغه طريقه دنفس
سر كشي هم كيدای شي ختمه كړله شي دوهم بايد په هغه باندي
دعبادت بوج زيات كړل شي څرنګه چي يوبار وړونكي حيوان ته
دخوراك وابښه كم واچول شي اوبار ورباندي زيات شي دنفس سر
كشي هم كيدای شي ختمه شي دوهم بايد په هغه باندي دعبادت بوج
زيات كړل شي څرنګه چي يوبار وړونكي حيوان ته دخوراك وابښه كم
واچول شي اوبار ورباندي زيات كړل شي نوبياهغه له سركشۍ څخه
دنرمي په لوري راځي همدغه رنګه حال دنفس هم دي ، دريم داچی
بهر حال اوهروخت كي له پاكه خدايه ﷻ څخه مرسته غواړئ ، كه
تاسو ورباندي ژور فكر وكړئ نوپوه به شی چي دغه دواړی خبري په
روژه كي په اكمل ترين ډول راوړل شوې دی.

نوله دې څخه معلومه شوه چي دنفسي ځواك ماتولو اودټولو قوتونو
په اعتدال كي راوستلو لپاره مونږ ته دروژې نيولو حكم شوی دي

یوبل حکمت پکښې داهم دي چې هروخت غمزده انسان دبل چا
دپریشاني اوغم پوره احساس کولای شي نوپه روژه کې داخبره شته
چې دروژه نیولو په وجه ډیر لوی لوي سرمایه لرونکي اودولت مندان
دلوږي اوتندي خوندوڅکي اوکله چې هغه دخپلو وړو معصومو بچو
بدل شوی حالت دروژې پروختویني نوهغو ته دنورو نادارو
اومسکینانو دلوږي اوتندي احساس پیداکیږي اودهغو په زړونو
کې دغه جذبه راټوکیږي چې له دغوبې سرپناهانو وږیو تږیو سره
دصدقې په ورکول مرسته وکړي.
هغو دولت مندانو چې په خوشحالۍ سره خپل ژوند ته دوام ورکوي
که په روژه کې دلوږي اوتندي تکلیف نه لیدلای نوپه خپل ټول عمر
به یې دلوږي اوتندي احساس کړی نه وای ،نوبیا که ورته یوه وږي(
مسکین) دضرورت لاس نیولی وای اودخپلو تکلیفونو اوپریشانیو
په پیش کولو سره یې ورنه څه غوښتي وای نو هغه به پر دغه بې چاره
وږي باندي څرنګه رحم کړی وای ځکه چې هغه خوبه پخپله هیڅ
دلوږي اوتندي له تکلیفه څخه خبر نه وای ، همداوجه ده چې دروژې
دنیولو ددغه حکمت په وجه له انسان سره دنادارو اومحتاجانو سره
دمرستي کولو جذبه اواحساس پیداکیږي اوله هغه سره دهمدر دی
اوقربانیو غوندي ښیګڼو وجودپه عمل راځي.

## دروژې جسماني او روحاني ګټې

روژې ته که په دنیاوي اوجسماني اعتبار وکتل شي نوپوهیږو چې
روژه مسلمان چالاك اوچست چسپ کوي ، دانسان څخه صبر

لرونکی اوشکر گذارجوړ وي همدارنگه ددوو مسلمانانو ترمینځ همدر دي اوغم شریکي رامینځته کوي اوديو منظم قوم جوړولو لپاره غوره ذيعه ده که دروژې دحقيقت په نظرکی نیولو سره هغه په پابندي او دزړه له اخلاصه ونیوله شي نوله انسان څخه دحرص ، طمعي اونس پرستي مادې په پوره ډول ختمیږي اودانسان په ځیره کي فرشته ترسترگو کیږي ، اودهمدې روژې په ذریعه دسمون اوکنټرول هغه قوت لاس ته راځي چي ددنیا ټول قوتونه دهغه په وړاندي سر ټیټي کیږي.

دطب داصولو له مخی هم روژه دجسماني صحت دترلاسه کولولپاره بهترینه لاره ده ، ځکه چي ديوولس مياشتی مدې پر وخت چي کومی خرابي اوبدن ته ضرر رسونکي اوبه په بدن کي راټولیږي هغه دیوې میاشتي په مده کي دروژې نیولو په سبب وچیږي چي له امله یې په روغتيا اوتوانمندي کي ښکارندویه ترقي راځي برسیره پردې په روژه کي نوري زياتي جسمي اومادي فايدي هم شته اوکومي فايدې چي دروحانیت سره تړلي دي هغه هم بې شماره دي دمثال په ډول ملائیکی هم دخوراك اوڅښاك اوجماع څخه پاکي دي همدارنگه خدای تعالی هم له دغو خواهشاتو څخه پاك دی نو دروژې دنیولو په وجه انسان هم دڅه وخت لپاره په دغه ملکوتي صفت باندي موصوف وي ، اوپه عین وخت کي د« تخلقو باخلاق الله » هم يوه ښکارندويې کیږي دروژې له نیولو څخه اخلاقي اوروحاني قوتونه پیداکیږی او دانسان زړه او دماغ ورباندی روښانه کیږی ،دلوږی او تندی تکلیف

دګناهونو لپاره کفاره ګرزي او انسان دنفس دبنه ترواك لاندي راوستلو په اعتبار مکمل انسان جوړيږي ،دروژې په وجه دانسان په طبیعت کی عاجزی او تواضع مینځ ته راځی .دروژی په سبب دلوږی دغم او تکلیف اندازه لګیږی او په دی وجه دهر انسان دغم او تکلیف داندازی په لګولو سره له هغه سره دمرستی جذبه پیداکیږی دروژه لرونکی هره جمله دپاك خدای ﷻ په عبادت کی شمارل کیږی ،ځکه چی ګله په روژه لرونکی باندی لوږه یاتنده راځی او نفس له هغه څخه دخوراك او څښاك تقاضا کوی نو دهغه زړه تر مابنامه پوری ورته داوایي چی داوخت تاته دپاك خدای ﷻ له طرفه دخوړلو او څښلو اجازه نشته، دروژه لرونکی زړه په همت پوره ازادی سره دالله ﷻ په طرف متوجه اوسی او دغه دزړه دالله ﷻ طرفته متوجه کیدل دټولو عبادتونو روح دی ،خلاصه داچی روژه دیوی ډیری لوي درجی عبادت دی .

## دروژې فضیلت

دفضائلو په کتابونو کی دروژی دفضیلت په اړوند ډیر تفصیلی بیانونه راغلی دی چی موږ دنمونی په ډول دری حدیثونه دلته راوړو او بیا وروسته له هغو دروژی مسئلی راوړو.

دسرور کائنات ﷺ ارشاد مبارك دی «چاچی محض دپاك خدای ﷻ لپاره روژه ونیوله نو دهغه ټوله هغه صغیره ګناه چی پخوا تردی یي کړی ده وبخښله شی»دحضورﷺ ارشا د پاك دی چی «دروژه لرونکی دخولی بوی پاك خدای ﷻ ته دمشکو تربوی هم زیات خوښ او ګران

دی »دقیامت په ورځ به دروژې زیات ثو اب ورکول کیږی دبخاری شریف (چی دحدیثو یو مشهور او لوی کتاب دی) یو حدیث شریف دی «دروژه لرونکی لپاره به دقیامت په ورځ تر عرش لاندی یو یو دسترخوان وغوړول شی او هغوی به ورباندی کښینول شی او خوراك به خوری په داسی حال کی چی نورټول خلك به لا په حساب ورکولو کی ګیر وی نورخلګ به ووايي چی دغه خلګ څوك دی چی دوی خوراك او څښاك کوی او موږ لا تردی وخته دحساب په ورکولو اخته یو نو په ځواب کی به وویل شی چی دغه هغه خلګ دی چی روژه به يي نیوله او تاسو هغه څوك یاست چی روژه به مو نه نیوله»

تشریح : روژه نسبتا دالله ﷻ په قانون کي دټولو عبادتونو څخه ځانګړی عبادت دی ځکه چی دنورو عبادتونو ثواب دفرشتو په ذریعه له لس چندی څخه بیا تر اوو سو چندی پوری ورکول کیږی خو روژه یو داسی عبادت چی په اړوند يي پاك خدای ﷻ فرمايي «روژه نیونکی ته دروژې بدله زه په خپله ورکوم» له دی نه زیات خوشحالی او خوش قسمتی بله څه کیدای شی چی هغه دخپلو عبادتونو بدله دخپل څښتن له مبارکو لاسونو څخه تر لاسه کوی او له دغه کار سره به دفرشتو هم څه واسطه (تړاو) نه وی ددنیوی ژوندانه په ډګر کی موږ په خپله وینو چی کوم شی یو چاته دحکومتی افسر (مامور) او یا بل کار کونکی لخوا ورکول کیږی دهغه تر مینځ او دهغه شی ترمینځ چی دولس مشر یا وزیر اعظم لخو ا چاته ورکول کیږی څومره زیات فرق وی نو څه فکر کول پکار دی چی دقیامت په ورځی

په هغه ډارونکی وخت کی کله چی عوام خو لا پر ځای پرېږده ،انبیاء علیهم السلام او اولیاء کرام رحمهم الله به دالهی عظمت او لویي څخه په ډار (ویره) کی وی او دپاك خدای ﷻ مخلوق به په سبب دخپلو ګناهونو څوك تر زنګنونو او څوك له سره تر پښو په سختو خولو کی ډوب وی او دغه لمر به چی داوخت یي سره له دومره لیری والی دتودوخی څخه ډیری پریشانیانی زیږیدلی دی په هغه ورځ په سرونو برسیره ولاړ وی او دسر ماغزه به ورڅخه خوټیږی په داسی نازك وخت کی چی دپاك خدای ﷻ خپل کلام دچا شفاعت کوی او روژی غوندی یو مبارك عمل بنده په خدای ﷻ باندی بخښی نو په داسی وخت کی داوبو ډوب کړی څګ ته هم امید وی.

ډیرو ګرانو او قدرمنو: دچاچی ددغو حدیثونو دویلو او اوریدلو څخه وروستو هم (خدانخواسته) دروژیدنیولو شوق اوجذبه پیدانه شی نو په یقین سره هغه زړه له ډبری څخه هم سخت دی او دزیاتو ګناهونو داثراتو په وجه هغه زړه بالکل زنګن شوی دی او دداسی چا لپاره دزړه په صدق اواخلاص توبه کښل پکار دی ،امید دی چی مهربان او ښښونکی خدای ﷻ به دهغه ګناه وروبښی او دهغه دزړه په صفاکولو سره به دهغه دزړه سختی په نرمی بدله کړی.

## دوهم باب
## دمیاشتی د لیدلو مسئلې
## داسلام اصول

داسلام اصول ساده او دلیدو کتو وړ دی ، اسلام دمختلفو عبادتونو او میلو ،خوشحالیو اوَ ثوابو نو دوختونو لپاره داسی شیان معیار ګرزولی دی چی پری پوهیدل او زده کول دهر عام او خاص او هر هغه انسان لپاره چی کم علم ولری او که یي ونه لری ممکن دی .داسلامی اصولو له ساده والی څخه یو داهم دی چی دسپوږمیځو میاشتو په اړوند یي له ځانه جوړونو په ځای دمیاشتی دلیدلو او یا دمیاشتی ددیرشو ورځو پوره کیدلو قانون جورکړی دی ددی علت څرګند دی چی یو څوك داسلام په طبیعت کی په هغو امورو کی چی له هر عام اوخاص سره تړاو ولری داسی تکلیف جن تحقیقات نشته دو هم داچی دکار پوهانو نظرونه هم له یو بل نه مختلف کیږی او کله خو غلط هم پریوځی . څرنګه چی نن موږ په کلیزو (جنتریو) کی هغه په خپلو سترګو وینو نو ځکه خو زموږ دامام اعظم رحمه الله دامسلك ده چی داسمانی علومو او حساب په بناء دعید او رو ژی فیصله کول صحیح نه ده ،هو! دهجری کلونو درواج کولو په خاطر په دغو میاشتو کی دغه فنی اندازی معتبریدای شی چی په هغو کی دکومی تاکلی نیتی سره شرعی عبادت تړلی نه وی .

(جدید فقهی مسائل ص ۸۸ ج۱)

## دمیاشتی لیدلو دوه برخې

په دی باندی پوهیدل پکار دی چی دسپوږمی (میاشتی) په لیدو کی
دوه برخی دی ، دسپوږمی لیدل او دسپوږمی لیدلو شاهدی اداکول
دسپوږمی دلیدلو په اړوند چی کوم خلګ داوایي چی دجهاز په هوا
ته پورته کولو سره او یا په دوربین کی دسپوږمی په لیدلو سره باید
کوم اعتراض نه وای او باید دغه لیدل منل شوی وای نو اصلا دهغو
یوه تر ټولو لویه کم فهمی داده چی هغوی داسی بولی چی مسئله
دسوږمی دوجود ده او حال دادی چی دغه بالکل غلطه ده ځکه چی
په شریعت کی دسپوږمی وجود معتبر نه دی بلکه په خلاصو سترګو
دسپوږمی لیدلو ته اعتبار ورکول شوی دی ، یعنی اسلامی شریعت
چی کومی معاملی دسپوږمیځ مدار په شتون پوری اچولی دی په
هغو کی دفوق الافق (برسیره تر افوقو) دسپوږمی وجود کافی نه ده
بلکه په سپوږمی کی دلیدلو قابلیت موجودیدل او په عامو نظرونو
دهغی پیداکیدل او لیدل ضروری دی ځکه چی هر لیك لوست
لرونکی په دی پوهیږی چی هیڅ او یوه ورځ هم سپوږمی بیخی له
مینځه نه ځی ،بلکه په څه ډول یا څه ډول حتما په خپل مدار کی
موجوده وی نو که دعصری وسائلو په ذریعه دسپوږمی لیدل کافی
شی نوبیا ورته د (۲۹)او(۳۰) شرطونه ولی لګول شوی دی ځکه که
تاسو وغواړی نو دځرخکو یا تیارو په لوړ پرواز کولو سره او یا
دهغو دوربینونو پکارولو سره چی دانسانی نظرونو تر مینځ دلمریزو
وړانګو دپردی جوړیدلو وړتیا له مینځه وړی په (۲۷)او(۲۸) هم

سپوږمۍ ليدلای شي ،نو له دې څخه معلومه شوه چې په هغو ټولو معاملاتو کې کومې چې په سپوږمۍ باندې راګرځي (چې پکښې روژه او دواړه اخترونه هم شامل دي) په مشروعي ډول دي ته اعتبار نه ورکول کيږي چې سپوږمۍ په افق (داسمان په څنډه کې)وي بلکه معتبره داده چې سپوږمۍ دليدلو ور وي او په عامو سترګو ليدله کيدای شي . (حاشيه مظاهر حق ج ۲ مخ ۸۷)

## دسپوږمۍ ليدلو لپاره کوشش کول فرض کفايي دي

په مسلمانانو باندې دغه امر فرض کفايي دی چې دشعبان او رمضان المبارك په (۲۹) نه ويشتمو نيټو دلمر لويدو پر وخت دسپوږمۍ ليدلو کوشش وکړي ،دروژې مياشت او روژه داسلام ددين له ارکانو څخه دي چې دواړه دسپوږمۍ په ليدلو پورې موقوف او تړلې دي . (کتاب الفقه ج۱ مخ ۸۹۲)

## دمياشتې دليدلو لپاره دور بين کارول

سوال : دروژې او دواړو اخترونو دمياشتو دليدلو لپاره ددوروبين کارول څنګه دي ؟

جواب : دوربين دعينکو (چشمو) په څير دنظر دزياتولو يوه اله ده په هغه باندې دمياشتې په ليدلو کې هيڅ حرج نشته خو مګر که داسې يوه دوربينې اله جوړه کړله شي چې مخته تردې چې سپوږمۍ داسمان لمنې ته راشي هغه ووينې نو په دغه دوربين سره دمياشتې ليدل روانه دي ،څکه چې سپوږمۍ اولمر هميشه په افق باندې وي .

(امدادالفتاوی ج۲ ص ۱۰۹)

## دسپوږمۍ دليدلو لپاره دهوايي جهاز کارول

درسالت دزمانی او دخلفائی راشدينو او دخير القرون دمعمول په بناء زما په نزد داکار ښه او خوښ کړی شوی کار نه دی چی دسپوږمی دليدلو لپاره دی دجهاز پورته کولو بندوبست وشی ددی معنی دا نه ده چی که په اتفاقی ډول په جهاز کی سپور يو مسافر سپوږمی ووينی او راشی شاهدی اداکړی نو دهغه شاهدی دی قبوله نه شی ځکه چی دهغه دشاهدی درد کولو لپاره هيڅ وجه نشته خو که کښته هو اګردجنه او داسی خړه پړه وی چی ليری نه وی چی دهغی په وجه دی سپوږمی ونه ليدله شی او پورته هوا صافه وی او سپوږمی ليدل پکښی ممکن وی خو په دی شرط چی دجهاز پورتوالی دومره نه وی چی دزمکی دخلګو نظر ورته نه رسيږی ځکه چی په شريعت کی هغه ليدل معتبر دی چی په زمکه ګرزيدونکی هم هغه ليدلای شی.نوکه په شل زره فټه پورته والی کی څوك سپوږمی ووينی نو دهغه ټول ښار لپاره داعتبار وړنه ده په داسی حال کی چی د اسمان له صافيدلو سره سره په زمه ګرزيدنکی هغه نشی ليدلای.

(الات جديده مخ ۱۸٦)

دسپوږمۍ په اړوند دستور پوهانو نظر داعتبار وړ نه دي

څرنګه چی دسپوږمی په باره کی دستورو پوهانو رايه داعتبار وړنه ده نو ځکه دهغو دحساب په بناء خلګو ته دروژی نيول واجب نه دی ځکه چی سرورکائنات (ص) روژه له مقررو علامو سره تړلی ده چی يا خو دمياشتی ليدل دی او يا دشعبان (برات)مياشتی ديرش ورځی

پوره کیدل دی دستور پوهانو وینا که څه هم په ډیرو دقیقو نظریاتو بناء وی نو هم داسی نشی کیدای چی په څه ډول هغوی وایي هغسی به کیږی ځکه چی ډیر وختونه دهغو نظرونه او رایي له یو اوبل سره په ټکر کی وی . (کتاب الفقه ج۱ مخ ۸۹۲)

## یوه عامه غلط فهمې

په شریعت کی درجب دمیاشتی څلورمه هیڅ اعتبار نه لری. داخبره چی مشهوره ده چی درجب څلورمه دروژی اوله ورځ ده نو داخبره دشریعت له نګاه بی اعتباره ده ترڅو چی دروژی میاشت ونه لیدله شی نو روژه باید ونه نیوله شی . (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۵)

## دسپوږمی په لوړیدلو او لوړیدلوکی دپنډیدو وینا بی اعتباره ده

کله چی سپوږمی ولیدله شی نو داویل چی دغه سپوږمی پرون بره شوی ده (ځکه چی ډیره لویه ده)

ډیره بده ده ځکه چی په حدیث شریف کی راځی چی ((دادقیامت له علامو څخه ده کله چی قیامت رانژدی شی نو خلګ به داسی کوی او وایي لنډه داچی د سپوږمی په لوی والی او کموالی هم باورمه کوی اونه دهندوانو هغه وینا پوره داعتبار وړده چی نن دسپوږمی دبریدلو دوهمه ده نو ځکه نن میاشت پوره ده په اسلامی شریعت کی دغه ټولی خبری دوهمیاتو په درجه کی دی چی په هیڅ ډول داعتبار وړنه دی .

(بهشتی زیور حصه ۳ ص۵ بحواله مشکوة ص ۱۷٤)

## شاهد ي څه شي ده؟

دشاهدی په اړوند په لنډ ډول په دی باندی پوهیدل ضروری ده چی خبر اوشاهدی دواړه ځان ته ځان ته شیان دی بعضی داسی خبری دی چی دیو خبر یا راپور په حیث خو داعتبار او باور وړتیا لری خو دشاهدی په حیث دقبلیدو وړنه وی ددغو دوو تر مینځ دغه فرق صرف اسلامی فرق نه ده بلکه زموږ په دغه دنیا کی په قانونی ډول دهغو ترمینځ ښکاره فرق دی ،په ټلیفون رادیو تلویزون ورځپاڼو او خطونو چی کوم خبرو نه راځی نو که دامعلومه شی چی هغه داعتبار وړدی نو په ټوله دنیا کی په حیث دیو خبر قبلیږی او په هغه دباور کولو له مخی ټول کارونه سرته رسول کیږی لیکن دغه خبر په معامله یا مقدمه کی دشاهدی په حیث ددنیا یوه محکمه هم نه منی بلکه داضروری ګڼله کیږی چی شاهد باید دفوج دمشر مخی ته حاضر شی او شاهدی ورکړی ترڅو هغه اصول چی دشاهدی ور کولو لپاره دی له شاهدی سره وکتل او وڅیړل شی .او د شاهدی دسموالی او یاغلطوالی پریکړه و شی په دغه فرق له پوهیدلو وروستو باید پوه شو چی په عام طور باندی شریعت دسپوږمی دلیدلو په کار کی دشاهدی اداء کولو معامله راوړی ده او دشاهدی اداکولو لپاره داقانون دی چی شاهدی تر هغه وخته دقبلیدو وړ نه ده ترڅو چی دشاهدی ورکولو له شرائطو سره سمون ونه لری دسپوږمی دلیدلو دشاهدی ورکولو لپاره لمړنی دری شرطونه هغه شرطونه دی چی دټولو کارونو دشاهدی اداء کولو لپاره شرط دی یعنی شاهد باید

بالغ عاقل او ليدونکی وی څلورم شرط يي دادی چی شاهد به مسلمان وی او پنځم شرط يي ترټولو مهم دی هغه داچی شاهد بايد عادل وی او عادل هغه چاته ويل کيږی چی له کبيره ګناهو څخه ليری وی او په کوچنيو ګناهو ييي هميشه والی نه وی کړی همدارنګه دهغه په ژوند کی سموالی سچوالی درښتياويلو اوُ نيکو کارونو دکولو اړخ غالب وی او دخلګو په فکر او نظر هغه داعتبار او باور وړګڼل کيږی دشاهدي ورکولو لپاره شپږم شرط دشاهدي دلفظ ويل دی يعني شاهد به داوايي چي زه شاهدي اداء کوم چي فلانۍ پيښه ياقصه داسي وه ، او اووم شرط دادی چي شاهد به داسي يوڅوك وي چي سپوږمۍ به يې په خپلو سترګو ليدلې وي ، داوريدلو خبره به نه وي ، اواتم شرط دشاهدي په اداء کولوکي دادی چي شاهد به دقاضي په مخ کي حاضر يږي اوبيله پردې به شاهدي اداء کوي که دپردې له شايا له ليري ځايه څخه دخط ټيلي فون ، وائرليس راډيو اوتلويزيون په ذريعه څوك شاهدي ورکړي نوهغه شاهدي نه بلکه خبر بلل کيږي . ( مظاهر حق جديد ج (۲) ص (۸۸).

## په سپوږمۍ ليدلو کي دراډيو شرعي حکم

دراډيو په ذريعه دراغليو خبرتياؤ اواعلانونو شرعی حکم دادي چي که چيري دغه اعلانونه اوخبرونه دشريعت له قاعدو او اصولو سره سم وي نوکه دهيواد له هري برخي څخه راغلی وي دشرعي ثبوت لپاره کافي دي ، دمثال په ډول په يومرکزي ښار کي چي آسمان يي صاف ؤ ګرد نه وو اوهلته دراډيو استيشن هم وو ، دحکومت له طرفه

دابندوبست وشو چي يو مسلمان پاچا دشريعت سره سمي شاهدي په ذريعه دسپوږمي دليدلو دثبوت حاصلولو څخه وروستو په دغو الفاظو باندي اعلان وکړ چي دسپوږمۍ دليدلو دشرعي ثبوت دلاس ته راتللو په اساس سبا د...په ورځ درمضان المبارك دمياشتي اويا دا ختر دمياشتي لمړۍ نيټه ده نودغه اعلان به معتبر ګڼل کيږي اودمذهب داصولو په بناء په هغه باندي عمل کول صحيح ده خوصرف داخبره به په نظر کي نيسی چي دمياشتي بايدد(۲۸)اويا (۳۱) ورځي نه وي بايد د(۲۹ او (۳۰) ورځي وي که دحکومت له طرفه دارنګه باقاعده نظام نشواى کيداى نوبيا دي دخلګو ترمينځ همدغه رنګه دسپوږمۍ ليدلو يوه کميټه جوړه کړله شي چي دهغې ټول غړى په شريعت برابر مسلمانان وي اوپکښي يوپوه عالم چي په دارنګه مسئلو باندي پوره واکمن واوسيږي هم بايد وي ترڅوټول شرعي کارونه په موثقه طريقه ترسره کړي شي هغه شرعي سپوږميځه اداره دي دسپوږمۍ دلوړيدلو دشرعي ثبوت په لاس ته راوړلو سره په راډيو کي ترخپلي سرپرستي لاندي اعلان وکړي چي وروستوله دې چي دسپوږمۍ دليدلوپاره ټاکلي شوي اداري دسپوږمۍ ليدلو شرعي ثبوت ترلاسه کړي دي نو ګرانو هيواد والو ته خبر ورکوو چي صبا د ..... په ورځ درمضان المبارك لمړۍ نيټه اويا د....... په ورځ دوړوکي اختر يالوي اختر ورځ ده ، په دغه دوهم صورت کي حکومت بايد دومره کار وکړي چي دنورو راډيو يي اويا تلويزوني پروګرامونو ترڅنګ ددغه پروګرام دنشر کيدلو منظوري

هم ومني ترځو ددغه کميټې يومسلمان نمائنده يا ټاکلي شوي غړی
هلته ورشي اوپخپله ددغي اداري فيصله اوريدونکو ته ورواوروي ،
ډير ځله راډيوګاني دغه رنګه اعلانونه دخپلو همکارانو په ذريعه
نشر کوي .
هغو ته ددغه په منظورولو کي څه بدي نشته صرف دومره لحاظ
ساتل پکار دي چي دهغه راپور الفاظ له شريعت سره سم وي کوم چي
دسپوږمۍ دليدونکې اداري لخوا ترتيب شوي وي ، که په غير
مسلم حکومت کي دارنګه انتظام وشي هم دشريعت له نظره صحيح
ده او ټول مسلمانان په اساني سره په هغه باندي عمل کولای شي که
داانتظام وکړل شي نوځانګړي حل به رامينځ ته شي اوترخط
اوټليفون به ترټولو زيات ښه اطمينان ورکونکی وي اودهر ډول
شرعي اصولو اوقواعدو سره به په سمون کي وي .
( انظام الفتاوی ج ۱ ص ۸۲)

## دراډيو يي خبر په اړوند دهندوستان دمستندو علماؤ فيصله

دراډيو خبر ديواعلان په څير ده ، دغه اعلان که دسپوږمۍ ليدلو
دسمي اوباوري اداري لخوا ( چي دسپوږمۍ دليدلو په صورت کي
دشاهدی په اخستلو سره دمياشتي دبريدلو فيصله کوي ) وي ، اويا
دداسي يوچا لخوا وي چي هغه دمسلمانانو قاضي يا دهغوشرعي
امير وي اوهغه دشريعت له قانون سره سم وروستو له شاهدي
اخستلو فيصله کوي اواعلان کونکي پخپله ياخوقاضي ياشرعي
امير اويا دسپوږمۍ ليدلو داداري مشر اويا دهغې باوري استاذي

وي نودځايي مشر ، قاضي اوداداري مشر ته دارواده چي ورباندي باور وکړي اودسپوږمۍ ليدلو پريکړه وکړي .

( فتاوی رحيميه ج (۵) ص (۱۸۶) بحواله روايت هلال عيد ورمضان کي مسائل ودلائل ص (۹۶).

په هغو مواردو کي چي تړاو يي له راپور اواطلاع سره وي ټليفون هم يوله اعتبار لرونکو شيانو څخه دی خوپه هغه حال کي چي يوشاهد قاضي، يا اداري ، يا بل چا ته دسپوږمۍ شاهدي اداء کوي نوهلته صرف دټليفون ليکه کافي نه ده ، بلکه دشاهد مخامخ کول اوحاضرول قاضي ته ، ضروري دی .

په دغه رنګه حالاتو کي داسي کول پکار دي چي دقضا ددفتر يا دسپوږمۍ ليدلو داداري له طرفه په ضروري ځايونو ( شهرونو يا کليو کي ) داسي څوك وټاکل شي چي هلته دسپوږمۍ دليدلو شاهدي واخلي اوبيا خپل لوی مرکز ته دټليفون په ليکه خبر ورکړي .

دخط اوټليفون دخبر په سلسله کي دشرعي تحقيقاتو مجلس ( ندوة العلماء) لاندنۍ پريکړه کړيده ، دليك اوټليفون په ذريعه خبر ورکول داعتباروړ نه دی ،خوکه له خاصو ټاکل شويو ځايونو څخه ترټاکل شوی انتظام لاندي کوم خط يا ټليفون راغي اوعلماؤ داوويل چي غالب ګمان داده چي دغه خط يا ټليفون به رښتيا وي نوپه دي بنياد دعلماؤ فيصله دقبليدلو وړ ده . ( جديد فقهي مسائل (۸۹، ۸۶ مخ ) .

### دټليفون په اړوند دمولاناتهانوي صاحب رحمه الله فتوی

هغه احکام چي حجاب پکښې دقبليدلو مانع ګرځي په هغو کي ټليفوني واسطه بې اعتباره ده ، اوپه کومو کي چي حجاب ( پرده )

دقبليدو مانع نه وي نوپه هغو کي که په قوي قرينو اوښو باندي دغږېدونکي پيژندنه وشي چي دغه فلانى دى چى په ټليفون کي خبري کوي نوبيا داعتبار وړ دى . (امدادالفتاوی ج ۲ ص ۷۸).

## له ځانګړيو ځايونو څخه دټليفون راتلو حکم

کله چي له کوم ټاکل شوي ځاى اوياداسي ښار څخه ( چي په هغه کي نامتو علماء اومفتيان صاحبان اوسيږي ) دمختلفو خلګو دابيانونه راورسيدل چي يا موږ پخپله مياشت وليدله ، اويا داچي ، زمونږ دښار قاضي صاحب يا دسپوږمى دليدلو دادارې مشر يامفتي صاحب اويا بل باوري (معتمد عليه ) سړي دشاهدي په اوريدلو سره دمياشتي دبريدلو پريکړه کړيده ) اوددغه بيان کونکو شمير دومره ډير شي چي عقلاً دهغو ددرواغ ويلو احتمال پاته نشي اوخبره دمستفيض ( چى دحديث يو قسم دى ) درجې ته ورسيږي اوځايې قاضي يا دسپوږمى ليدلو ادارې مشر اويا معتمد عليه ( چي باورپرې کيداى شى ) سړى ته دهغو خبرو دصحيح والي يقين اويا غالب ګمان حاصل شي نوهغه ته بيا داحق هم په لاس ورغلى دي چي دعيد(اختر)يا مياشتي دبريدلو اعلان وکړي يويا دوه ټليفونونه کافي نه دي ، اودخط هم دغه حکم دي. ( فتاوی رحيميه ج ۵ ص ۱۸۹).

## په سپوږمى ليدلو کي دخط شرعي حکم

دخط حکم دادي چي که خط ليکونکي ددوو معتبر اوښو مسلمانانو په مخکي خط وليکي اوهغه دوه يي شاهدان کړل اوبيا يې له خط سره وليږل اودغو دوو نفرو دخط راوړلو وروستو شاهدي اداء کړه

چي ليكونكي زموږ په مخكي دغه خط وليكو ، نودغه خط معتبر اودليل گرزيداى شى نوكه ددغه خط ليكونكي شرعي قاضي اويا دهغه ځاى ناستى (لكه دسپوږمى ليدلو داداري والي يا دغسي نور) وو ، اوپه هغه كښي يې دسپوږمى دليدلو خبر ليكلى وو نوبيا په هغهَ خط باندي عمل كول واجب دى اوكه له نورو نورو ځايونو څخه دمختلفو خلگو له خوا دسپوږمى ليدلو دومره زيات خطونه راغلل چي پكښي د انكار كولو گنجائش نه وو نو په دغه صورت كي هغه هم داعتبار وړ دي اودسپوږمى ليدلو لپاره گڼور دي.

(نظام الفتاوى ج ۱ ص ۲۳۱)

## دخط شرعى حيثيت

صرف دخط په خبر باندي دروژې نيولو اوماتولو شرعي حكم نشته ، خوكه په خط باندي راغلى خبر تصديق كړي شي اويا نورې نښي درښتوني كومك كونكې شي نوبياورباندي عمل كول صحيح دى .

(فتاواى دارالعلوم ج ۴ ص ۳۷۶) .

پوښتنه : دشعبان دمياشتي (۲۹) وه خوداوريځې له وجي چا مياشت ونه ليدله اوپه جنتري كي ليكلي ؤ چي دشعبان مياشت (۲۹) ورځي ده اودټولو خلگو داخيال وي چي مياشت به د(۲۹) وي ، په داسي صورت كي په جنتري اوخط باندي باوركول اودرمضان المبارك اوله جوړول صحيح ده اوكه نه ؟

جواب : په دغه صورت كي بايد دشعبان دمياشتي ديرش ورځي پوره كړل شي اوبيا دروژې دمياشتي لمړۍ نيته وگڼله شي ، څرنگه چي په

حدیث شریف کې دشپوږمې په اړوند راغلي دي ، کله چې میاشت وینئ نو روژه نیسی اوکله چې دعید میاشت وینی نو روژه پای ته رسوي ) اوپه جنتري اوخط باندي باید باور ونشي .
(فتاوای دا رالعلوم ج ۴ ص ۳۶۹ بحواله درمختار ج ۲ ص ۱۳۲ اومشکوة ص )

**په هغو ځایونو کې چې پکښې په تسلسل سره یاخوسپوږمۍ لویږي نه اویاخوپکښې راخیږي نه هلته به روژه څنګه جوړ وي**

په هغو ځایونو کې چې سپوږمي په ترتیب سره روزانه نه راخیږي اونه لویږي بلکه څوڅو ورځي یاڅوڅو میاشتي پیوسته راختله ، اویا لویدلی اوسي ، نوپه هغو ځایونو کې دکوم بل نزدې ځای ( چې پکښې له دوو ورځو سوا نوره ټوله میاشت د سپوږمۍ په لویدلو اوراختلو کې تیریږي اوپه اساني سره په هغه باندي پوهیدل اولیدل کیدای شی ) په بنیاد ګرځولو سره دروژې دمیاشتي اودهغې دلمړۍ نیټې تعین وکړای شي اوبیا دي دورځي اوشپې ګرزیدلو یوه مجموعه برابره کړي ، اوبیا دي یوه مجموعه پوره یو شواروز (۲۴ ساعته ) کړی اودهغې اوله برخه دي شپه وبولي اودهغې له ختمیدلو څخه دي دوه ساعته مخته پیش لمۍ وکړي اودروژې نیت دي وکړي اودشب اوروز دوهمه نیمائې چې ورځ ګڼله کیږی ) چې کله سرته ورسیږې نوهغه وخت دي روژه ماته اودماښام لمونځ دي وکړي .
( نظام الفتاوی ج ۱ ص ۷۸ )

## چیري چي اسمان همیشه صاف نه وي هلته درمضان دثبوت شرعي طریقه

پوښتنه : په هغو هیوادونو کي چي فضا پکښي داورو په وجه خړه پړه اوخرابه وي ( لکه برطانیا ) اودسپوږمۍ دلیدلو دشاهدي اداء کولو امکان نهٔ وي هلته به دمیاشتي لیدلو شاهدي په څه ډول وي ؟ په دغه صورت کي دمسلمانانو لپاره درادیو په دې اعلان چي سپوږمۍ لیدله شوې ده اعتبار کول صحیح دی اوکه نه ؟

جواب : هغه رادیو چي په اړوند یې علم اویقین ترلاسه شي چي هغه دشرعي ثبوت څخه وروستو دسپوږمۍ لیدلو اعلان کوي نودهغې رادیو په اعلان باندي عمل کول صحیح دی په دې شرط چي په هغې باندي دعمل کولو په وخت سپوږمۍ د(۲۸) اویا (۳۱) نه وي .

اوکه چیري دغه علم اویقین ترلاسه نه شو مګر غالب ګمان داوو چي دغي رادیو دسپوږمۍ لیدلو د شرعی اثبات دترلاسه کولو څخه وروستو دغه اعلان کړي دی نوکه ددنیا له هري برخي څخه وي اعتبار ورکول اوعملورباندي کول صحیح ده ، په دې شرط چي په هغه وخت کي میاشت د(۲۸) اویا (۳۱) نه وي ... اوکه غالب ګمان هم حاصل نشو مګر له مختلفو لورو اوهیوادونو څخه دسپوږمۍ دلیدلو دثبوت لپاره دومره اطلاعات راغلل چي په هغه شمیر ددرواغو دعادت اتفاق نشوای کیدای نوداستفاضی دصورت په جوړولو سره دهغه سره سم عمل کول صحیح دی.

یادونه : په دغو ټولو صورتو کې دعوامو ( امیانو) دعلم ، یقین ، غالب ګمان اواستفاضې جوړولو اعتبار نشته ، بلکه دځایې سپوږمۍ لیدلو دادارې فیصلې اوغالب ګمان ته اعتباروركول کیږي ، اوکه دغه اداره نه وه ، نوبیا هلته دواقع جامع مسجد امام یاخطبه ویونکي یامعتبر عدل هغه فیصله داعتبار وړده چې له غالب ګمان اویا استفاضې څخه ترلاسه شوي وي .

اوکه له پورته ذکر شویو صورتونو څخه یوهم لاس ته رانغلي یا دحنفی فقهي سره سم ونه لویدو اوپریشاني زیاتي وي ، نوکومه پوښتنه چې ذکر شوې ده په دغه صورت کې داسې کول پکار دي چې که په هغه ځای یا ښده کې دنورو مذاهبو ( شافعی ، مالکي اوحنبلي ) خلګ اوسیدل اودمیاشتي د(۲۸) اویا (۳۱) ورځې نه وي نوعوام دي له خپلی رایی څخه کار نه اخلی بلکه داحنافو ( حنفي مذهب ) له علماؤ څخه دي فتوی ترلاسه کړي اوکه دغه صورت هم ممکن نه ؤ یعنی دشافعیانو مالکیانو اوحنبلیانوخلګ اوکلي هم نه و یا دهغو کلي وو خو مګر باوري فتوی موجوده نه وي یا دهغوفتوی ګاني له یواوبل سره په ټکر کي وي نوبیا دی دحنفي مذهب والاؤ علماؤ باوري فتوی ترلاسه کړي اویا دي دهغو باوري کتابونه وګوري ، دداسي مجبوري په صورت کي دي دهغو دمعتمد مسلك لټه وشي اوله هغه سره سم دي عمل وشي .

( نظام الفتاوی ج۱ ص ۲۳۴ تر ۲۳۶ پورې).

## په شاهدي کي دهغه چا شرعي حکم چي ددين پابند نه وي

کوم سړی چي ددين پابند نه وي ، هروخت ګناهونه کوي دمثال په ډول لمونځ نه کوي روژه نه نيسي ، درواغ وايي اوهمدارنګه نور ګناهونه کوي دشريعت پابندي نه کوي ، نوپه شريعت کي دهغه دوينا هيڅ اعتبار نشته که څه هم هغه دډيرو قسمونو په ملتيا يوه خبره کوي ، بلکه که په دغه رنګ دوه يادري نفره وي لاهم يې وينا داعتبار وړنه ده . (بهشتی زيور ۳ حصه ۵ ص په حواله داخيرنی هدايې ۴۶ مخ).

## دعيد دمياشتي لپاره دشاهدي شرعي قانون

کله چي دسپوږمۍ ليدل عام کيدای نشي اوصرف دوو ياڅلورو نفرو هغه ليدلې وي اوداپه داسي حال کي وي چي فضا سمه اومطلع (دسپوږمۍ دلوړيدلو ځای ) بالکل صافه وي ، دسپوږمۍ ليدلو لپاره اوريځ ، لوګی ګرد اوداسي نور مانع نه وي ، نو په داسي صورت کي صرف ددوو يا درو نفرو ليدنه اوشاهدي شرعا داعتبار وړ نه ده ، ترڅو چي دمسلمانانو يو لوی ټولی دسپوږمۍ ليدلو شاهدي ورنکړي نودسپوږمۍ ليدل صحيح نه بلل کيږی ، چاچی دسپوږمۍ ليدلو شاهدي ورکړې ده هغه بايد يا دهغو غلطي اويا درواغ وګڼل شي ، اوکه مطلع صافه نه وه اودآسمان په لمنو کي دومره ګرد ، اووريځ ، لوګی اوداسي نور وو چی دسپوږمۍ دليدلو مانع ګرځيدای سوای نوبيا به دروژې دمياشتي په ليدلو کي يوښه ، کلك مسلمان اودعيد دمياشتی په ليدلو کي دوه کلك اوښه مسلمانان معتبر ګڼل کيږی . ( جواهر الفقه ج ۱ ص ۳۹۹).

**که داخبره مشهوره وه چې میاشت لیدل شوې ده خوشاهد نه وو**

په ټول ښار کې داخبره مشهوره وه چې تېرمابښام سپوږمۍ لیدل شوې ده ، ډیر خلګو لیدلې ده ، لیکن ډیرې هڅې اوکوششونه وشول خوبیا هم داسې څوك پیدانشو چې هغه پخپلو سترګو باندې میاشت لیدلې وي ، نودداسې ویناګانو هیڅ اعتبار نشته (بهشتی زیور (۳) ص (۵)

**که دیواځنې سپوږمۍ لیدونکې شاهدې ونه منله شوه نوهغه به څنګه کوي؟**

یوچا دروژې میاشت یواځې ولیده ، بغیرله هغه څخه په ټول ښار کې بل چا ونه لیدله اوهغه لیدونکې دشریعت پابندنه ؤ ، نودهغه په شاهدې سره به دښار وټول خلګ روژه نه نیسی لیکن هغه سړی به روژه نیسې ، اوکه بیا دغه میاشت لیدونکې دیرش روژې پوره ونیولې خوبیا هم دعید میاشت ونه لیدله شوه نوهغه باید (۳۱) یودیرشمه روژه هم ونیسې اوبیا دې له نورو ښاریانو سره یوځای اختر جوړ کړي . (بهشتی زیور حصه (۳) ص (۵) .

**یواځنې سپوږمۍ لیدونکې به اختر نه جوړوي**

که یوچا دعید میاشت یواځې ولیده اوبل څوك سپوږمۍ لیدونکې نه ؤ نودهغه په شاهدې باندې دشریعت له نظره باید اعتبار ونشي ، هغه سپوږمۍ لیدونکې ته دعید جوړول صحیح نه دې سهار دې روژه ونیسې اودسپوږمۍ لیدلو ته دې اعتبار نه ورکوي اوخپله روژه دې نه ماتوي.

(بهشتی زیور ۳ حصه ۵ مخ ، په حواله دعالمګیري ۱ج ۱۹۲ مخ).

## يو د پرشمه ورځ باید روژه ونه نیوله شي

که د دوو باوري خلګو په شاهدي ورکولو سره د میاشتي لیدنه ثابته شوه ، که مطلع صافه وي او که نه وي نو دیودیرشم په ورځ باید روژه پای ته ورسوله شي او هغه دوړوکي اختر لومړۍ ورځ وبلله شي .

( بهشتي ۱۱ حصه ، ۱۰۴ مخ په حواله دشامي ۱ج ۱۹۲ مخ ).

## که په ورځ کي سپوږمۍ ولیدله شوه ؟

که د میاشتي د دیرشمې نېټې په ورځ کي سپوږمۍ ښکاره شوه نو هغه به د راتلونکې شپې بلله کېږي ، نه ده تېري شپې ، او هغه ورځ به د راتلونکې میاشتي څخه نه بلله کېږي ، سپوږمۍ که له زوال څخه له مخه لیدله شوې وي او که تر هغه وروستو.

(بهشتی زیور ۳ حصه ، ۱۰۴ مخ ، ردالمختار ۱ ج ۱۴۹ مخ).

## بغیر له سپوږمۍ لیدلو یې په روژه نیولو پیل وکړ ، کله چي اته ویشت ورځې تېري شوې نو د اختر میاشت ولیدله شوه

که دیوښار خلګو د روژې د میاشتي لیدلو بغیر د روژې نیول پیل کړل ، د روژې د (۲۸) په ورځ یې د عید میاشت ولیدله ، نو که دوئ د شعبان میاشت لیدلې وه او بیا یې دېرش ورځې پوره کړې وې او بیا یې روژه پیل کړې وه ، نو بیا به دیوې روژې قضا راوړي او که یې د شعبان میاشت هم نه وه لیدلې او په اټکل یې دهغې دېرش ورځې پوره کړې وې او بیا یې د روژې نیول پیل کړي ؤ نو بیا به ددوو روژو قضاء راوړي او که یې بغیر له لیدلو د میاشتي روژه نیول پیل کړل او

دروژې د(۲۹) په ورځ يې مياشت وليده نو وروباندې هيڅ قضا لازمه نه ده . (عالمگيري اردو پاکستاني ج ۲ ، مخ ۹).

## درمضان په (۲۹) دسپوږمۍ ليدلو شاهدي

که دروژې د(۲۹) نه ويشتم په ورځ شاهدانو شاهدي ووېله چې مونږ ستاسو ترروژه نيولو يوه ورځ له مخه مياشت ليدلې وه ، نوکه دغه شاهدان ددغه کلي ؤ نوامام دي دهغوشاهدي نه قبلوي ، ځکه چې هغو واجب پريښوول ، اوکه له کوم بل ليري ځای څخه راغلي ؤ نوبيا يې دشاهدي قبلول جائز دي ، ځکه چې دهغو په ذمه تهمت نشته . (فتاوای عالمگيري اردو پاکستاني ج ۲ ص ۱۰).

## دورځې په (۱۲) بجې دسپوږمۍ ليدلو خبر ترلاسه کول

دسپوږمۍ ليدلو خبر چې هروخت چاته ورسيږي په دې شرط چې يقيني اومعتبر وي ، صرف دغير رسمي خط اوټليفون په ذريعه نه وي که څه هم ترلمر لويدلو څه وخت مخته وي نوبايد روژه وروباندې ماته کړله شي ، دروژې نه ماتولو په صورت کې انسان ګنهګاريږي . (فتاوای دارالعلوم ۶ ج ۴۹۳ مخ په حواله ددرالمختار کتاب الصوم ۱ج ۱۲۵ مخ).

## که ترلمر لوېدوله مخه سپوږمۍ وليدله شوه هغه داعتبار وړنه ده

پوښتنه : دلمرترلوېدلو پورې دوه ياڅلور دقيقې پاتې وې چې زيد وويل مامياشت وليدله روژې ماتې کړئ ، بکر له دې څخه انکار وکړ خوله زيد سره (۱۵) يا (۲۰) نفرو روژه ماته کړه داوخت به موږ ددغو خلګو روژه نيول شوې بولو اوکه څنګه ؟

جواب : ترلمر لويدو له مخه دسپوږمۍ ليدل هيڅ اعتبار نه لري ، هغه ورځ خو دروژې له مياشتي څخه ده ، داختر له مياشتي خونه ده ، نوپه دغه خلګو کي چي چا په دې نظر روژه ماته کړي ده چي ګواکي لمر لوېدلی دي نوځکه سپوږمۍ وليدله شوه نوپه هغوباندي دروژې صرف قضاء لازمه ده ، اوڅوك چي په عين خال کي په دې پوهيږي چي لالمر نه دی لويدلی خوروژه يې ماته کړه ، نوپه هغوباندي دقضا ترڅنګ کفاره هم لازمه ده . (فتاوی رحيميه ۲ج ۲۰ ص)

## دشاهدي څخه وروستو دروژې نه ماتول

پوښتنه : که مولوي صاحب دسپوږمۍ دليدلو دشرعي شاهدي په راتلو سره دعيدحکم ورکړ ، خوصرف يوه نفر روژه ماته نکړه نودهغه حکم څه دي ؟

ځواب : هغه سړی ګنهګار شوې دي بايد توبه وکاږي .

(فتاوای دارالعلوم ۶ج ، ۴۹۳ مخ په حواله دردالمختار ۲ج ۱۲۵ ص).

څوك چي دحاکم دشرعي فيصلی وروستو هم روژه نه ماتوي نوهغه ګنهګاريږي ځکه چي دشرعي شاهدي په وجه دغه ورځ دعيد ورځ ګرځي ، اودعيد په ورځ روژه نيول حرامه ده.

(احسن الفتاوی پاکستاني ۴ ج ۴۱۵ مخ ).

## ديوښار خلګو دسپوږمۍ ليدلو دخبر په بناء (۲۹) روژې ونيولې اودبل ښاروالو دسپوږمۍ پخپله ليدلو په بناء (۳۰) روژې ونيولې

دهدايې ملاصاحب په خپل کتاب ( مختارات فوازل ) کي ليکي چي ديوشهروالو دسپوږمۍ له ليدلو څخه وروستو (۲۹) روژې اودبل

ښار والاو دمیاشتي په بناء پوره (۳۰) روژې ونیولې نوکه ددواړو ښارونو دمطلع اختلاف موجود نه وو نو د(۲۹) روژو نیونکي به دیوې روژې قضا راوړي اوکه دهغو مطلع جلاجلا وه نوبیا دقضا ضرورت نشته .

علامه لکهنوي رحمه الله په دغه موضوع باندي دتفصیلي بحث څخه وروستو (له ډیرو زیاتو مطالعو وروسته) دافیصله کړې ده چي دهغه یو څه الفاظ مونږ دلته رانقل کوو ) .

په عقلي اونقلي دواړو لحاظونودامسلك صحیح دی چي داسي دوه ښارونه چي ترمینځ یې دومره جلاوالی وي چي ورباندي مطلع بدل شي چی اندازه یې دیوې میاشتي دمسافت (سفرکولو) کیدای شي ) نوپه هغو کي دیوه ښار دسپوږمۍ لیدل دبل ښار لپاره معتبر نه شي بلل کیدای ، اوهغه ښارونه چي دومره سره لنډ وي چي ترمینځ یې دیوې میاشتي سفر کولو مسافه نه وي نودیوي رؤیت دبل لپاره لازمي اوضروري دی ، دلیکونکي په خیال دغه نظر ډیر معتدل اوبرابر دی ، مگر دمطالعو دبدلون دحد په ټاکلو کي دیوې میاشتي دمسافت دقید په ځای به دنویواسماني حساب دکارپوهانو په نظر باندي تکیه کول ډیر مناسب وي. (جدید فقهي مسائل ۱ج ۹۲ ص)

### دمطالعو په اړوند دشرعي تحقیقاتو دمجلس فیصله

دشرعي تحقیقاتو (ندوة العلماء لکهنو) غونډي چي دجوړیدلو نیټه یې ۳،۱۴مئ ۱۹۶۷۱ وه دمختلفو روشن فکروعلماؤ اواستازوپه

ګډون چې په دغه مسئله باندې کومه پریکړه کړې وه هغه په لاندې ډول ده .....

(۱) په حقیقت کې دټولې دنیا مطلع یوه نه ده ، بلکه پوره اختلاف موجود دی اودغه یو واقع کیدونکی شئ دی په دې کښې دفقهاؤ کرامو کوم اختلاف نشته اوپه حدیث کې هم ددې تائید شوی دی .

(۲) البته دفقهې ماهرین په دې خبره کې سره اختلاف لري چې دروژې دمیاشتې په پیلولواوپای ته رسولو کې دغه اختلاف دمطالعو معتبر ده اوکنه ؟

دحنفې مذهب محقیقینو اودامت دعلماؤ دځرګندونو اودلیلونو په رڼا کې ددغه مجلس متفقه رایه داده چې په لیرې لیرې ښارونو کې دروژې په باب هم اختلاف دمطالعومعتبر دی .

(۳) له لیرې لیرې ښارونوڅخه مقصد دادی چې هغه له یواوبل څخه دومره لیرې واقع وې چې دعادت له مخې دسپوږمۍ په لیدلو کې دیوې ورځې فرق ولري ، په یوه ښار کې یوه ورځ مخته سپوږمۍ لیدله کیږي اوپه بل ښار کې یوه ورځ وروستو لیدله کیږي ددغو لرو پرتو شهرونو کې که په یوې کې دسپوږمۍ لیدل په بل باندې هم لازمې وګرزول شې نوکله به داسې هم کیږي چې دیوه ښار د روژې میاشت (۲۸) ورځې شې اودبل ښار بیا (۳۰) ورځې پوره شې ، حضرت عبدالله ابن عباس ؓ په روایت کې هم ددغه قول تائید شوی دی .

(۴) نژدې ښارونه هغه دي چې دهغوترمينځ دعادت له مخې دسپوږمۍ ليدلو يوه ورځ فرق نه وي ، دفقهي علماؤ ديوې مياشتې دسفر په اندازه ليري والي (چې نژدې پنځه يا شپږ سوه ميله کيږي ) له بلادبعيده (ليري ښارونه ) څخه بللی اوتردغه کم يې بلادقريبه (نژدې ښهر ) بللی دی ، دغه مجلس داسي يوچارټ جوړول ضروري بللی دی چې له مخي يې دامعلومه شي چې مطلع په څومره ځای کي بدليږي اودکومو ، کومو هيوادونو مطلع يوه ده .

(۵) دهندوستان اوپاکستان دډيرو سيمو مطلع يوه ده ، همدارنګه ځيني نژدې هيوادونه لکه نيپال اوداسي نور هم په دغه مطلع کي دي دپاکستان اوهندوستان دعلماؤ عمل هميشه په دغه باندي ؤ نوپه غالب ګمان چې له تجربي څخه به هم دغه ثابته شوې وي .

ددغو هيوادونو دښارونو ترمېنځ دومره ليري والی موجود نه دی چې پکښی دمياشتی دليدلو يوه ورځ فرق راشی نو په دې اساس په دغو هيوادونو کی چی په هر يوه کی مياشت وليدله شوه نو وروستو له دې چی شرعی ثبوت موجود شی دهغې منل او دروژې يا اختر جوړول ددوارو هيوادونو په ټولو ښاريانو لازم دي .

(۶) دمصر اوحجاز غوندي ليري پرتوملکونو مطلع له پاکستان او هند سره يوه نه ده،بلکه هغه جلا او دغه جلا ده ددغو ملکونو دسپوږمۍ ليدل دهغو ملکو نو لپاره او دهغو ملکونو دسپوږمۍ ليدل ددغو ملکونو لپاره په هر حالت کی لازم او دقبلېدا وړنه دی،ځکه چی دهغو او پاکستان او هند تر مينځ دومره ليري والی

موجود دی چې په سپوږمۍ لیدلو کې یې عموما یوه ورځ فرق واقع کیږي او کله خو لا تردې هم زیات وی . (جدید فقهی مسائل ج۱ مخ۹۳)

## په سپوږمیځ تاریخ کې حکمتونه او ګټې

له سپوږمیځ تاریخ سره داسلامی احکامو په تړلوکی ډیر حکمتونه او ګټی دی.

(۱) په شرعي احکامو کی ددې خبری خیال ساتل شوی دی چې کم علم او کم عقل انسان هم دهغوی په ترسره کولو کی داوریدلو را اوریدلو یا بندیدلو سره مخ نشي او هر شهري او کلیوال،هر لوستی اونالوستي دواړه له یوبل سره سم په اساني سره دشریعت داحکامو پابندي وکړای شي ،سپوږمیځ تاریخ (نیټې) ته نه دجنتری اړتیا شته او نه دبل څه سړی که په ځنګل کی وی او که په کلي کی په وچه کي وي او که په دریاب کي هر چیرته چي وي نو په اسانۍ سره دسپوږمیځو میاشتو او نیټو پته لګولای شي.

(۲) سپوږمیځي میاشتي همیشه په هر موسم کي په ګرزیدو راګرځیدو سره راځي، نو ځکه په هر موسم کي دهر ډول عبادت کولو موقع انسان ته په لاس ورځي.

(۳) دروژې دتړاو حکمت له سپوږمیځو میاشتو سره یو داهم دی چي کله په نیمه دنیا باندي دسوړوالي موسم وی نو په بله نیمایي دنیا کی بیا ګرمي وي ځکه چي دسپوږمۍ میاشتي په بدلون سره راځي نو ځکه که ددنیا دیوې برخی اوسیدونکو څوکاله په ګرمي کي روژه نیولې وي نو څوکاله بیا دوی ته په سوړوالي کي دروژې نیولو وخت

ور کول کیږي او که روژه دلمریځو میاشتو په اعتبار نیوله کېدای نو دتل لپاره به په یو وخت دروژې میاشت واقع کیدله،او دغه خبره به دیو عالمګیر مذهب په خلاف وه.

## یوه غلط فهمي

ځینی خلګ دا وایي چي میاشت باید(۲۹)ورځي نه بلکه پوره (۳۰)ورځي وای، نو دغه ارزو داسلام له شعائرو څخه په خلاف کي ده ،ځکه چي په موږ باندي درمضان المبارك روژې نیول فرض دي،داچي میاشت (۲۹) ورځي کېږي او که (۳۰)ورځي دهغه کوم تاکلی حد نشته پخپله حضور ﷺ هم پخپله زمانه کي ځیني کلونه (۲۹)روژې نیولې دي.

## دریم باب

## دروژې دنیت مسئلې

دهر عبادت دسموالي لپاره نیت یو شرط دی ،دمشکوة شریف لمړنې حدیث شریف (انما الاعمال بالنیات)ددې شاهددی چي دروژې سموالی او صحیح والی په نیت باندي مشروط دی فرض روژه وي او که نفل،دقضا روژه وي او که نذر بغیر له نیت څخه صحیح نه ده بې له نیت څخه که ټوله ورځ خوراك اوڅښاك پریښودل شي هم نو روژه ورته نشي ویل کېدای، خو یادونه باید وشي چي په ژبه سره دنیت دالفاظو ویل ضروري نه دي ، بلکه پېشلمی ته پورته کېدل او خوراك کول هم له نیت څخه دي خو په ژبه سره دنیت دالفاظو ویل زیات ښه کار دی.

دروژې په میاشت کي دهري روژې لپاره نیت ضروري دی
درمضان المبارك دهري روژې لپاره نیت کول ضروی دی دیوې روژې
نیت دټولو روژو لپاره نه کافي کیږي. (علم الفقه ج۳مخ۱۸)

## له شپې څخه نیت کول شرط نه دی

که چا درمضان المبارك دروژې نیت په شپه کي وکړ نو هم فرض اداء
شو او که یې دشپې څخه اراده دروژه نیولو نه وه کله چي سهار شو
نو بیا یې هم وویل چی زه به نن روژه نه نسم ،وروستو لمر راوختلو
او ورځ پیل شوه نو له هغه سره دافکر پیداشو چي دفرضو پریښودل
ډېره بده خبره ده او هغه وخت یې دروژې نیت وکړ نو دهغه روژه
صحیح شوه، په دې شرط چي له صبح صادق څخه بیا تر دغه وخته
یې روژه ماتونکی کار نه وی کړی.(بهشتی زیور حصه۳ مخ۳)

## دنیت کولو اخېري وخت

که انسان خوراك او څښاك نه وي کړی نو دغرمې څخه پوره یو
ساعت له مخه کولای شي دروژې نیت وکړي،له صبح صادق (رڼتونو
سپیدو)څخه بیا دلمر تر لوېدو پوري ،دټول وخت نیمایي ته ((شرعي
نصف النهار)) ویل کېږي .دصبح صادق او لمر راختلو تر مېنځ چي
کوم وخت وي ،دشرعی نصف النهار او عرفي نصف النهار(زوال) تر
مینځ دهغه نیمایي فرق وي دمثال په ډول دصبح صادق اولمر ختلو
ترمینځ یو نیم ساعت وخت وو نو تر عر فی نصف النهار پاوکم یو
ساعت له مخه به شرعي نصف النهار وي .ددغه وخت اندازه په هر

وخت او هر ځای کي مختلفه وي نوځکه هغه په ساعتونو نشي اندازه کېدای دذکر شوي قانون سره سم باید عمل وشي .
(احسن الفتاوی پاکستاني ج٤مخ٤٣٧)

## دنصف النهار (دورځي تر مینځ) تاکلو طریقه

دنصف النهار دتاکلو طریقه داده چي اول دي داوکتل شي چي صبح صادق په څو بجې وي او لمر په څو بجې لوېږي دهغو تر مینځ چي څومره ساعتونه دي دهغو مېنځ دي معلوم کړي نو که يې په اوله برخه کي دننه دروژې نیت وکړ نو روژه يې سمه شوه او که اوله نیمایي پوره تیره شوه یا ترهغې هم څه زیات وخت تېر شو نو بیا روژه نه صحیح کېږي دیوه ساعت قید پکښي داحتیاط په وجه لګول شوی دی . (بهشتی زیور حصه ۳مخ۳)

## په زړه کي فکر یا خیال ته نیت ویل کیږي

درمضان المبارك په روژه کي صرف دومره نیت کول هم کافي دی چي نن زما روژه ده یا په شپه کي دافکر وکړي چي سبا زما روژه ده بس په دغه نیت کولو سره هم روژه صحیح کیږی که څه هم دايې په خیال کي نه وي راغلي چي درمضان روژه ده او یا فرضي روژه ده .
(بهشتی زیور حصه۳مخ۳)

## په مطلق نیت سره درمضان المبارک دروژې اداء کیدل

که چا دروژې په میا شت کي دانیت وکړ چي زه به سبا نفلي روژه نیسم،درمضان المبارك روژه نه نیسم دهغې به بیا بل وخت قضاء

راوړم نو سره له دغه نیته هم دغه روژه نفلي نه ده بلکه درمضان المبارك فرضي روژه ګرزي

(بهشتی زیور حصه۳ بحواله فتاوی هندیه ج۱ مخ۱۹٤)

## په رمضان کي دقضايي روژې دنيت حکم

که له چا څخه درمضان المبارك په تیره میاشت کي روژې قضاشوې وې او لا تر دغه رمضانه يي قضاء راوړي نه وه نو کله چي بيا درمضان میاشت پيل شوه نو هغه پکښي دقضاء دروژې په نیت روژه ونیوله نو سره له دغه نیته هم دغه روژه دقضاء نه بلکه درمضان المبارك فرضي روژه ګرزي دقضاء روژه دي بيا دروژې له میاشتي څخه وروستو ونیسي. (بهشتی زیور حصه ۳ بحواله فتاوی هندیه ج۱ مخ ۱۹٤)

## په رمضان المبارک کي دنذري روژې نيول

که يو چانذر منلی وو چي که زما فلانی کار وشو نو زه به دپاك خدایﷻ لپاره دومره روژې نیسم نو بيا وربادي درمضان میاشت راغله نو هغه پکښی دنذري روژې نیت وکړ او درمضان دروژې نیت يي ونه کړ نو سره له دغه نیته هم دغه روژه دنذر روژه نه بلکه درمضان المبارك فرضي روژه ده ،دنذر روژه دي له رمضان څخه وروستو بيا ونیسي ،لنډه داچي درمضان المبارك په میاشت کي چي په هر نیت باندي روژه ونیوله شي هغه درمضان المبارك روژه ګرزي نه هغه روژه چي هغه يې نیت کړي وي.

(بهشتی زیور حصه۳ بحواله قدوري مخ٤٥)

## ايا دشعبان د (۲۹) نفلي روژه دسپوږمۍ دليدل کېدو په خبره سره فرضي گرزي؟

که دشعبان (برات)په (۲۹) درمضان المبارك مياشت ونه ليدله شوه نو راتلونکی سهار نفلي روژه هم مه نيسی خوکه داسي وو چي يو چا دجمعي يا شنبې يا بله کومه ورځ دروژې نيولو لپاره مقرره کړې وه او هر وخت به يې په دغه ورځ روژه نيوله او ناڅاپي دغه ورځ دشعبان له (۲۹) سره برابره شوه نو بيا په دغه ورځ روژه نيول بهتره دې که له کوم بل ځای څخه دمياشتي ليدلو خبر راغی نو هغه نفلی روژه فرضي گرزي او دهغې قضاء به نه راوړي

(بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۳ بحواله شامی ج۲ مخ ۱۱۹)

## که دشعبان د (۳۰) ديرشم په شپه دروژې مياشت ونه ليدله شوه نو دديرشم په ورځ بايد تر غرمې پوري څه ونه خوړل شي

که دشعبان (برات)په (۳۰) ديرشمه شپه دروژې مياشت چا داوريځې او يا بل څه په وجه ونه ليدله نو دراتلونکې ورځې تر زوال يو ساعت له مخه پوري دی خوراك او څښاك نه کوي که له کوم بل ځای څخه دسپوږمۍ ليدلو خبر راغی نو دروژې نيت دي وکړي ،او که خبر راونه رسيدو نو بيا دي خوراك او څښاك وکړي.

(بهشتی زيور حصه ۳ مخ بحواله نور الايضاح)

## دشک روژ ې حکم

که چا دشك په ورځ (ديرشم دشعبان)خورا ك او څښاك وکړلو او وروستو دامعلومه شوه چي نن درمضان لومړۍ ورځ وه نو په هغه

باندې دالازمه ده چې دهغې ورځې په پاتې برخه کې هيڅ يو داسې شي ته نږدې نشي چې روژه ور باندې ماتيږي او درمضان المبارك له تېرېدوڅخه دې سمدستي دهغې روژې قضا راوړي او كه يې دشك په ورځ په دې نيت روژه ونيوله چې نن درمضان لومړۍ ورځ ده او بيا څرګنده شوه چې هغه ورځ دشعبان وه نو هغه روژه هيڅ صحيح نه ده (كتاب الفقه على مذهب اربعه ج۱ مخ۸۹٦)

دشعبان په (۳۰) كه دسپوږمۍ ليدلو شاهد پيدا نشو او چا په دغه ورځ روژه ونيوله نو په هر نيت چې يې نيولې ده هغه روژه يې وشوه كه په (۲۹) دشعبان سپوږمۍ ونه ليده شوه نو داخيال مه كوئ چې سبا ورځ درمضان المبارك نه ده او زما په ذمه دخلورو كلونو روژې پاته دي نو ځكه زه هغه روژې نسم او يا راباندې نذر شوې روژه پاته ده هغه به ونيسم په دغه ورځ دقضاء كفارې او دنذري كفارې ټولو روژې نيول مكروه دي په دغه ورځ بايد هيڅ روژه ونه نيوله شي خو كه بيا چا دقضاء يا نذر روژه نيولې وه او بيا دسپوږمۍ دليدو خبر راورسيدو نو ددغې روژې په نيولو سره درمضان المبارك روژه اداء كيږي او دنذر يا قضاء روژه دې بيا بل وخت ونيسي او كه په دغه ورځ كې دسپوږمۍ دليدو خبر را نغې نو بيا هغه روژه وشوه دكومې چې نيت شوى وو. (بهشتى زيور حصه ۳ مخ٤ بحواله شرح وقايه ج۱مخ۳۰)

### ايا په يو وار ددېرو روژو نيت كول كافي دي؟

كه دروژې نيول په پرله پسې ډول واجب وي نو بيا دټولو لپاره په يو وار نيت كول كافي دى،لكه درمضان المبارك روژې ،دروژې

دكفارې روژې او دظهار دكفارې روژې يعني ترڅو چې دغه پرله پسې والى له مينځه تللى نه وي نو ورسره هغه اول نيت په ځاى پاته دى او كه دمرض يا سفر پيښېدو په وجه دغه تسلسل له مېنځه ولاړ نو بيا دهري روژې لپاره له شپې څخه نيت كول ضروري دى همدارنګه كه دغه سفر يا مرض پاى ته ورسيدو او دروژو پيوستوب واقع شو نو هلته هم دټولو لپاره يو نيت كافي دى.

(كتاب الفقه على مذهب اربعه ج۱ مخ ٨٨٤)

**دګومو روژو په نيت كې چې پيوستوب واجب نه وي دهغو دنيت طريقه**

كه څوك داسې روژې نيسي چې پيوسته نيول يې واجب نه وي لكه درمضان دروژو قضا يا دكفارې روژې نو دهري روژې لپاره تنها تنها نيت كول ضروري دى دهغو لپاره دلومړۍ روژې نيت كول كافي نه ګرزي. (كتاب الفقه على مذهب اربعة ج۱مخ٨٨٤)

## دنيت قاعده

په نفلي روژو نذر معين او درمضان المبارك دروژو نيت له شپې څخه بايد وشي كه داسې ونه شو نو سهار تر شرعي نصف النهار پوري لا دروژې نيت كيداى شي او دنورو روژو لپاره له شپې څخه نيت كول ضرورى دى . (فتاوى دار العلوم ج٦ مخ ٤٤٦ بحواله رد المختار ج۱ مخ١١٦)

## پېشلمى په نيت كې شمېرل كېږى او كه نه؟

درمضان المبارك دهرې روژې بايد نيت وشي پېشلمى كول هم يو نيت دى دابېله خبره ده چې كه دپېشلمي كولو په وخت يې دروژې نيولو اراده نه وه نو پېشلمى په نيت كې نه ګڼل كېږي كه يې دشپې

په اول کې دروژې نیت وکړ بیا یې دلمر راختلو ترمخه دغه بېرته مات کړ نو دادنیت ماتول په هر ډول روژو کې داعتبار وړ دی.

(کتاب الفقه علی مذهب اربعة ج۱مخ۸۸۱)

## په ژبه سره دنیت اظهار کول ضروري نه دی

په ژبه سره دنیت اظهار کول ضروري نه دی بلکه صرف په زړه کې اراده لرل کافي دی تر دې چې پېشلمي کول هم دنیت پر ځای دریدلای شي ځکه چې پېشلمي خو خلګ ددې لپاره کوي چې سبا وباندي روژه ونیسي خو مګر که دچا عادت داؤ چې په دغه وخت به یې خوراك او څښاك کاؤ او یا کوم بدبخته پېشلمی کاؤ او روژه یې نه نیوله نو دهغو لپاره پېشلمی دنیت په ځای نشي درېدلای.

(علم الفقهٔ ج۳ مخ ۱۸)

## دناروغ او مسافر دنیت حکم

درمضان المبارك په میاشت کې دناروغ دروژې نیت دمختار مذهب سره سم دروغ جوړ او مقیم په څېر دي په دې معنی چې که ناروغ دروژې په میاشت کې دبلې روژې نیت وکړي نو دهغه نیت داعتبار وړنه دی په هر حالت به دغه درمضان المبارك روژه بلله کېږي. خو که مسافر دروژې په میاشت کې دبلې روژې نیت وکړي نو دهغه نیت معتبر دی او په کوم نیت چې هغه روژه نیولې ده هغه روژه یې وشوه (نفلي روژه وي او که واجب).

(شامي ج۲ مخ۸۶ کتاب الصوم)

## دتشریق په ورځو کي (دلوی اختر دمیاشتي په ۱۱-۱۲-۱۳) روژه نیول نه دی روا

که دوړوکي او لوی اختر په ورځو یا دتشریق په ورځو دلوی اختر په (۱۱-۱۲-۱۳) چا دروژې نیت وکړ نو دهغې روژې پوره کول وربانذی ضروري نه دي او دماتولو په صورت کي یې وربانذي نه یو داچي قضا راوړل نشته بلکه ماتول یې واجب دي ځکه چي په دغو ورځو کي روژه نیول مکروه تحریمی دي . (علم الفقه مخ۴۱)

## که نیت ونه کړي نو دځان له وږي ساتلو روژه نه جوړیږي

که یو چا تول ورځ نه څه وخوړل نه یې څه وڅښل او تر ماښامه همداسي پاته شو مګر په زړه کي یې دروژې اراده نه وه بلکه وږی نه وو یا په کومه بله وجه ورته دخوړلو څښلو وخت او ځای نه وو برابر شوی نو دهغه روژه نه ده شوې او که یې په زړه کي دروژې اراده کړې وه نو بیا روژه ګرزیدای شي . (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۳)

## له نیت کولو څخه وروستو هم تر صبح صادق پوري خوراک کولای شئ

په شریعت کي دروژې وخت له صبح صادق څخه پیل کیږي ترڅو چي دغه وخت راغلی نه وي نو خوراك څښاك او هر څه روادي بعض خلک دشپې په پیل کي له پېشلمي کولو او دنیت ددعا له ویلو ورستو دافکر کوي چي نور باید له نیت څخه وروسته هیڅ هم ونه خوړل شي دغه فکر غلط دی ترڅو چي صبح صادق راختلې نه وي نو هرڅه خوړل روادي که نیت یې مخته ترې کړی وي او که نه .

(بهشتی زیور ج ۳ مخ ۳)

## دکومو کومو روژو لپاره له شپې څخه نیت کول ضروري دي

درمضان المبارك دقضايي روژو لپاره دنذر غیر معین لپاره دکفارې دروژو لپاره، همدارنګه دهغو نفلي روژو دقضا لپاره چې دنيولو پېل يې شوی وي او بيا بېرته فاسده کړله شوې وي له لوېدلو دلمرڅخه بيا تر راختلو دصبح صادق پوري نيت کول ضروري دی له صبح صادق څخه وروستو نيت کول ورته نه کافي کېږي . (علم الفقه ج۳مخ۱۹)

## بهتره داده چي په ژبه سره دنيت اظهار وشي

په زړه کي اراده لرل خو دروژې لپاره کافي دی او څه ويل هم ضروري نه دی بلکه چي په زړه کي يې دغه فکر وي چي نن نن زما روژه ده او ټوله ورځ له هغه څه نه ځان ساتي چي ورباندي روژه يا خو ماتيږي يا خرابيږي نو روژه يې وشوه خودا به لا ډيره ښه وي چي په ژبه هم داووايي چي يا الله ﷻ زه به سبا روژه نيسم ،يا دغه عربي الفاظ ووايي (بِصَوْمِ غَدٍ نَوَيْتُ مِنْ شَهْرِ الرَّمَضَانُ) (بهشتی حصه ۳مخ۳)

## وروستو له نيت کولو دروژې ماتول

پوښتنه : يو چا درمضان المبارك په شپه کي دروژې نيت وکړ يا بغير له رمضان څخه يې په شپه يا په ورځ کي دنفلي روژې نيت وکړ نو دغه سړی په ورځ يا شپه کي دڅه عذر په وجه يابې له عذره هغه ماتولای شي اوکه نه؟

جواب : په شپه کي دنيت ماتول په دې ډول امکان لري چي په راتلونکې ورځ کي دخوړلو او څښلو اراده وکړي مګر په ورځ کي چي روژه پيل شوه نو بيا نيت نشي ماتيدای ،درمضان المبارك دروژې

دنیت ماتول که له شپې څخه وو نوبیا وربانديي صرف قضاء لازمېږي
او که یې په ورځ کي دنیت په ماتولو سره خوراك او څښاك وکړ نو
بیا وربانديي کفاره هم لازمه ده او په نورو روژو کي که دنیت ماتولو
اراده له شپې څخه وه نو نه وربانديي قضا شته او نه کفاره او که یې
په ورځ کي دروژې دنیت په ماتولو سره خوراك او څښاك وکړ نو بیا
قضاء وربانديي لازمه ده،او په هغو روژو کي چي تاکلی وخت ولري
دنیت ماتول بې له عذره روانه دي او په هغو کي چي تاکلی وخت ونه
لري بېله عذره هم نیت ماتول صحیح دی. (امداد الفتاوی مخ ۱۷۶)

**چاچي دروژې نیت نه وي کړی هغه ته دخوراک کولو حکم څنګه دی؟**

پوښتنه : چاچي درمضان المبارك په شپه کي نه داویلي وي چي سبا
به روژه نیسم او نه یې داویلي وي چي سبا روژه نه نیسم نو هغه ته په
ورځ کي دخوراك کول روادي او که نه؟

جواب : که یې تر زوال له مخه نیت ونه کړ نو دهغه دغه روژه صحیح
نه شوه مګر درمضان المبارك داحترام په خاطر ورته خوراك او
څښاك روا نه دی او که خوراك څښاك یې وکړل نو بیا وربانديي صرف
قضاء لازمه ده. (امداد الفتاوی ج۱مخ ۱۷۳)

## څلورم باب

## دپېشلمي مسئلې او فضائل

دالله ﷻ دقانون هم یو نادر او عجیب جوړښت دی ،له هغه سره دهرڅه
خزانې شته،هغه په هر څه باندې په مطلق ډول قادر دی،هغه دځپل

ذات په اړوند فرمايي وَهُوَ يُطعِمُ وَلاَيُطعَمُ دغه خدایﷻ خلک مړوي
خودی خوراك ته ضروره نه لری.

دامشهوره خبره ده چې دپاك خدایﷻ رحمت صرف (بهانه) غواړي،
كه وګورو نو پېشلمی کول دبندګانو له خپلو مقاصدو څخه دی مګر
ځرنګه چي دروژې نسبت دپاك خدایﷻ طرفته دی، نو هغه په
پېشلمي کي هم دمسلمانانو لپاره اجر او ثواب ايښی دی، پېشلمی
کول سنت دی په حديث شريف کي دهغه ډېر فضېلت بيان شوی دی
، حضور اقدسﷺ فرمائلی دي چي ديهودو او نصاراؤ دروژو او زموږ
دروژو تر مينځ صرف دپېشلمي فرق دی (يعني دوی پېشلمی نه کوي
او موږ پېشلمی کوو) همدارنګه حضور ص فرمايي چي الله ﷻ او
دهغه فرشتې په پېشلمي کونکو باندي رحمت نازلوي که سړی وږی
نه وي او خوراك يې زړه ته نه کېږي هم بايد ددغه سنت دپرځای کولو
لپاره يو يا دوه خرماوي وخوري يا صرف داوبو يو سور (غړف) وڅښي
ترڅو په سنتو باندي عمل وشي . دحضورﷺ ارشاد دی چي په
پېشلمي کي برکت دی، يعني دهغه په سبب دانسان په بدن کي
چستي او قوت پيداکېږي.

ناوخته پېشلمی کول مستحب دی دهغه له ناوختي څخه مطلب دادی
چي ترڅو پوري دصبح صادق دراختلو يقين نه وي پيداشوی تر هغه
پوري بايد خوراك څښاك او هر څه وکړل شي او کله چي صبح صادق
ښکاره شي نو بيا بايد هر څه پرېښودل شي، صبح صادق داسي وي
چي کله هغه ښکاره کېږي نو دختيځ داسمان په څنډو يالمنو کي درڼا

لیکه ښکاریږي بیا درنا په ډېرېدلو سره تاریکي له مېنځه ځي بس همدغه ته صبح صادق ویل کېږي.

صاحب کشاف دپېشلمي طریقه په دې ډول لیکلې ده چې ټوله شپه په شپږو برخو وویشئ او دهغوپه اخیرنۍ برخه کې پېشلمی وکړی ،دبېلګي په ډول که دلمر له لوېدلو څخه بیا دصبح صادق تر راختلو پوري ټول (۱۲) ساعته وي نو تاسو په اخېرنیو دوو ساعتونو کي پېشلمی کوی، او په دغو دوو ساعتو نو کي هم ځنډول ښه دي خو دومره ځنډول هم نه چي په روژه کي شك پیدا کړي.

پېشلمی په لغت کي هغه خوراك ته ویل کېږي چي سهار ته نزدې وخوړل شي ،ځني خلګ له تراویح لمانځه څخه وروسته ډېره ډوډۍ خوري او بیا ویده کیږي او ځینی بغیر له پېشلمي روژې نیسی نو ددغو خلګو که څه هم روژه نیول خو صحیح کېږي خو دپېشلمي له اجر او ثواب څخه بې برخي پاته کیږي .روژه نیونکی همېشه باید پېشلمی وکړي ځکه چي په هغه کي خوشحالي،ګټه او مفت ثواب دی مګر داخبره شته چي افراط (تر اصلی حد زیات کول) اوتفریط (تر اصلي حد کموالی) په هر څه کي ضرر رسوونکی دي ،نه باید دومره کم څه وخوړل شي چي په عبادت کولو کي کمزوري راشي او نه دومره باید زیات څه وخوړل شي چي ټوله ورځ مو ورڅخه زړه ابشبېږي ځکه چي په حدیث شریف کي ډېرو خوړلو څخه منعه راغلې ده.

## دپیشلمي کولو سنت وخت

روژه نیونکي ته دپېشلمي کول دشپې په اخېرنۍ برخه کي تر صبح صادق له مخه سنت او دثواب او برکت باعث دی دشپې له نیمایي څخه وروستو چي هر وخت پېشلمی وکړل شي نو سنت به ورباندي اداء شي مګر بالکل دشپې په اخېر کي پېشلمی کول ډېر بهتر دی که اذان ویونکی دسهار اذان له وخت څخه مخته ووایو نو دپېشلمي په کولو کي تر هغه پوري مانع نه ګرزي ترڅو چي صبح صادق راختلي نه وي، نو تر هغه وخته هرڅه خوړلای شئ ،دپېشلمي له پای ته رسېدو وروستو په زړه کي دروژې نیت کول کافي دی خوکه په ژبه سره هم دغه الفاظ ووایي نو ډېره به ښه وي (بِصَوْمِ غَدٍ نَوَيْتُ مِنْ شَهْرِ الرَّمَضَانُ) (جواهر الفقه ج۱مخ۲۸۱)

## دحضورﷺ په زمانه کي دپېشلمي او سهار په مینځ کي دجلاوالي اندازه

حضرت زید بن ثابت ﷺ روایت کوي چي ما دحضور ﷺ سره یو ځای پېشلمی وکاوو بیا حضورﷺ دلمانځه لپاره ولاړ شو، حضرت انس (ﷺ) ویلی دي چي ما ورڅخه پوښتنه وکړه چي دپېشملي او اذان تر مېنځ څومره وخت وو؟ هغه ﷺ را ته وویل دپنځوسو ایتونو دویلو په اندازه .(بخاری شریف ج۱مخ۶۸۹)

## دپېشلمي او روژه ماتي لپاره ډول وهل

څرنګه چي دنکاح لپاره او دجنګ داعلان لپاره دډول غږول له حدیثو څخه ثابت دی دغه رنګه یې دسپوږمۍ لېدو پر وخت دپېشلمي پر

وخت او دروژه ماتي پر وخت دضرورت په وجه او داعلان په ډول غږول روادی په دې شرط چي دباجې په شان به نه وي.

(فتاوی رحیمیه ج۳ مخ ٤٠ بحواله شامي ج٥ مخ ۳۰۷)

## دپیشلمي اوروژه ماتي لپاره دگینټي، یانغاري وهل اویا ډزي کول

درمضان المبارك په میاشت کي که په جامع مسجد کي دپیشلمي او روژه ماتي دسم وخت ښودلو لپاره دیوډول باجي بندوبست وشي ترڅو دهغې په ذریعه ټول مسلمان له پیشلمي اوروژه ماتي څخه خبر کړي ایا دا روا دي که نه ؟ ځیني خلک دغه دنا قوسو اودهندوانو سره دمشابهت اودنبي کریمﷺ اوصحابه کرامو په زمانو کي دنه ثبوت په وجه بدبولي ، آیا داصحیح دي اوکه نه ؟

ځواب : دریا غږول فقهاؤ روا بللې ده چي دپیشملي او روژه ماتي پروخت یې هم په غږولو کي څه بدي نشته ، مگر دریا به په مسجد کي دننه نه ښودل کیږي ، اوله ناقوسو او نورو سره هغه ځکه مشابه نشو بللي چي هغه خلک دغې داعلان دخصوصیت په وجه عبادت بولي خو دلته پکښي داخبره نشته اودخیر القرون په زمانو کي دهغه بیلگه دنکاح پر وخت دریا وهل دي له دې څخه هم هدف دیوعبادت دمتحقق کیدلو ښکارندویې ده ، اوله هغې څخه هم هدف دیوطاقت دمستحقق کېدلو اعلان دی اوکه ورباندي ژور فکر وشي نو دډول دمکروه والي په مقابل کي دخلکو ضرورت ډیر زیات دی .

(امداد الفتاوی ۲ج ۱۰۱ ص).

## دپیشلمي دسنت اداء کولو لپاره دپان خوړل

دپیشلمي خوړل سنت دي که سړی وږي نه ؤ اوخوراك يې نه کولو نو کم ترکمه دوه يا درې خور ماکاني ، اويا بل شي دي لږ يا ډير وخوري اوکه هغسي هم نشو کيداي نوخالصي اوبه دي وڅښي ، که يوچا پيشلمي ونه کړاوکله چي راپورته شو نوصرف يوپان يې وخوړلو نوهم ورته دپيشملي ثواب ملاوشو (بهشتی زیور ۳ حصه ۱۴ مخ بحواله نسايي شريف ۲۰۵ مخ)

## پیشلمی بالکل دسهار په وخت هم مه کوئ

په پيشلمي کي چي څو پوري کيداى شي بايد سهار ته نزدي کړل شي ليکن دومره هم نه چي دسهار کېدو په وجه په روژه کي شك پيدا شي (بهشتی زیور ۳ حصه ۱۴ مخ ، بحواله نسایی شریف ۲۰۵ مخ)

## دپیشلمي وختي کول اوپان دشپې تراخيره پوري خوړل

که يو چاپيشلمي دشپي په اوله نيمايې کي وکړ ، اوله هغه څخه وروستويې پان يا نسوار يا چاى دصبح صادق ترنزدې کيدلو پوري خوړلو کله چي ترصبح صادق پوري کم وخت لاپاتي ؤ هغه په خوله اوبه وګرزولې نوهم هغه ثواب يې ترلاسه کړ کوم چي دشپې په اخېر کي دپېشلمي په کولو سره ؤ. (بهشتی زیور ۱ حصه ۱۴ مخ بحواله شرح البداية ۱ج ۲۰۵ مخ).

## تراذان لږله مخه خوراک اوڅښاک کول

پوښتنه :زيد وايې چي ډيرناخبره خلګ چي دپېشلمې په وخت نه پوهيږي ترڅو چي اذان يې نه وي اورېدلى خوراك اوڅښاك کوي په دې اړوند سمه مسئله څه ده ؟

جواب : له صبح صادق څخه وروستو خوراك كول منعه دی ، كه اذان شوی وي اوكه نه وي ، په دې اړوند ډير احتياط پكار دی .

( فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۴۵ مخ بحواله ردالمختار ۱ج ۱۱۰ مخ)

## دغلطي په وجه له سهاركيدلو وروسته پېشلمی كول

كه يوڅوك ناوخته له خُوبه راويښ شو اودافكر يې وكړ چي شپه لاپاته ده نوځكه يې پېشلمی وكړ بيا وروستو ورته دامعلومه شوه چي له سهاركېدلو څخه وروستو يې پيشلمی كړی دی ،نودهغه سړی روژه فاسده شوې ده ، هغه به ددغي روژې قضاء راوړي خوكفاره ورباندي لازمه نه ده همدارنګه به په پاته وخت كي هم ترماښامه پوري دروژه لرونكو په څېر اوسي اوڅه به نه خوري همدارنګه كه داسي وشول چي يوڅا په دې ګمان چي لمر لوېدلی دي روژه ماته كړه خوبيا وليدل شو چي لمر نه دی لوېدلی نوپه دغه سړی باندي هم قضاء ددغې روژې لازمه ده ، خوكفاره ورباندي نشته ، اوبيا هم ورته دخوراك كول ترهغه روانه دي ترڅو پوره ماښام نشي.

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۴ مخ بحواله شرح البدایه ۱ج ۲۰۵ مخ).

## داذان پروخت په خوله كي دپاتي ګولې تيرول

پوښتنه : يوڅا داذان په وخت كي پيشلمی كولو ، كله چي اذان پيل شو نوهغه دنور څه خوړل بس كړل خوپه خوله كي يې يوه يا دوه ګولې ډوډۍ پاتي وه په هغې پسي يې اوبه وڅښلې اوتېره يې كړه ، نو روژه يې سمه ده اوكه قضاء ورباندي لازمه ده ؟

ځواب: که غالب ګمان داؤ چي له صبح صادق څخه وروستو اذان پيل شو ، نودغه روژه فاسده شوه ، اوکه ترشك لاندي حالت ؤ نوهغه وخت خوړل څښل مکروه دی مګر روژه يې روغه ده .
(احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۲ مخ)

## بي پيشلمې روژه

پوښتنه: بې پېشلمي روژه نيول صحيح دی اوکنه؟
جواب: دروژې لپاره پېشلمی کول مستحب دی ، نوبې له پېشلمي هم روژه صحيح کېدای شي.
(فتاوی دارالعلوم ۴ج ۴۹۶ مخ)

که دپېشلمي کولو لپاره څوك هم راويښ نشول اوتوله کورنۍ ويده وه نوبغير له پېشلمي دي روژه ونيسي ، دپېشلمي په پاته کېدلو سره دروژې نه نيول کم همتي اولويه ګناه ده . (بهشتی زیور ۳ حصه ۱۴ مخ)

## دوخت ختميدلو په حالت کي دپېشلمي کول

که وخت دومره کم شو چي دصبح صادق دراختلو شك راپورته شو ، نوبيا دهرشي خوړل مکروه دي ، که چا په دغه وخت کي څه وخوړل نوبد يې وکړل اوګناه يې وکړه وروستو له هغه که دامعلومه شوه چي هغه وخت په سهار کي داخل ؤ نوبيا قضاء ورباندي لازمه ده ، اوکه هيڅ هم معلومات ونشو اوشك همداسي شك پاته شو نوبيا ورباندي قضا واجب نه ده مګر احتياط په دې کي دی چي دهغي قضاء راوړي
(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۴ مخ بحواله شرح البدایة ۱ ج ۲۰۵ مخ)

## له پېشلمي وروستو له مېرمني سره يوځاى والى

پوښتنه: درمضان المبارك په مياشت كي دپېشلمي څخه وروستو له مېرمني سره جماع كول (يوځاى كيدل) څنگه دي، اوله هغه څخه وروستو دغسل كولو وخت ترکومه پوري دى؟

جواب: په رمضان المبارك كي كه دپېشلمي څخه وروسته سهار كېدلو ته وخت پاته وو نوبيا جماع كول صحيح دي غرض داچي سړي بايد دسهار ترپيل كېدلو له مخه له جماع څخه ځان فارغ كړي، اوغسل كه بيا وروستو وي هم روژې ته تاوان نه رسوي.

(فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴۹۶ مخ)

## له سهاركېدلو وروستو په خوله اوبه گرزول

پوښتنه: كه يوڅوک پېشلمى وكړ اوپه خوله يې اوبهٔ ونه گرزولې اوويده شو، نودا دروژې لپاره تاوان لري اوكنه؟

جواب: كه هغه دغاښونو ترمينځ پاته شوي شيان ديوې چنې (نخود) په اندازه تېر شو، نو روژه وربانديِ ماته ده او ددغي روژې هم ورباندي قضاء لازمه ده خوكفاره ورباندي نشته، اوكه تردغې اندازې كم ؤ نوبيا ورباندي روژه نه فاسدېږي دروژې دفاسدېدلو له وجي بايد مخته ترويده كيدلو خوله، ښه پريمنځل شي.

(احسن الفتاوى پاکستاني ۴ج ۴۴۳ مخ)

## دروژې په مياشت كي دسهار په جماعت با ندي تلوار كول

پوښتنه: درمضان المبارك په مياشت كي كه دپېشلمي څخه وروستو ددې احتمال موجود ؤ چي كه پر يوزم نودسهار دلمانځه

لپاره به راپورته نشم ، نوپه اول دوخت کي لمونځ کول څنګه دي ؟
اوپه دې وجه چي له ډېرو خلګو څخه جماعت پاته کیږي اوآن چي
لمونځ هم ورڅخه قضاء کېږي نوپه اول دوخت کي اذان کول
اوجماعت کول څرنګه دي ؟

ځواب : حامدا ومصليا * درمضان المبارك په میاشت کي که دسهار
دلمانځه لپاره لمونځ کونکي راټولېدل ، او دابیره وه چي که پخواني
دسهار دلمانځه تروخته پوري وځنډول شي نويا به له خلګو څخه
جماعت پاته شي اويا به ورنه لمونځ قضاء شي ، نوبيا په اول دوخت
کي دلمانځه کول بهتر دی . (فتاوی محمودیه ۱ج ۱۶۲ مخ).

## پنځم باب

## په کومو شيانو چي روژه نه ماتېږي

په روژه کي بعض داسي شيان دي چي نه خو وربانديي روژه ماتېږي ،
اونه وربانديي مکروه کیږی ، دغه خبري باید په یا دوساتلي شي ،
ځيني خلګ له خپله عقله اوفکره داوايې چي په دې سره مي روژه
ماته شوه ، نوبيا په قصد سره خوراك اوڅښاك اونورڅه کوي ،
اوحال دادی چي په دغه صورت کي مسئله داده چي که په مسئله
باندي له پوهېدلو سره يې په هېره خوراك اوڅښاك وکړ اوبيا يې په
قصد سره جماع وکړه نو کفاره وربانديي هم لازمه ده ، اوکه يې په
قصد سره صرف خوراك اوڅښاك وکړ نوصرف قضا وربانديي لازمه
ده .

(بهشتی زیور ۱۱ حصه ۱۰۴ مخ)

## په هېره سره خوراک اوجماع کول

که چا په هېره سره په روژه کي څه وخوړل اويا يې له مېرمني سره جماع وکړه ، نو روژه يې نه ده ماته شوې که پوره خوراك يې کړي وي هم اوکه څوڅو واره يې خوراك کړي وي نوهم روژه يې پخپل ځای ده .
(بهشتی زيور ۳ حصه ۱۴ مخ بحواله قدوري ۴۵ مخ).

## دروغ اوکمزوري په مينځ کي دهېريدلو فرق

که يوچاپه هيره سره خوراك کوي نوهغه بايد وکتل شي که دومره قدرت اوتوان يې لاره چي له روژې نيولو څخه ډير نه په تکليف کېدلو نوروژه وريا دول واجب دی ، اوکه داسي يوڅوك ؤ چي دروژې نيولو توان يي نه وو اوله روژې نيولو څخه په تکليف کېدو نوهغه ته دي روژه نه وريادوي ، هرڅه چي خوري هغه دي وخوري .
(عالمګېري ۱ج ۲۰۲ مخ)

## په روژه کي درانجو، تيلو اوعطرو لګول

دروژې په حالت کي په ورځ کي درانجو لګول ، تېلو استعمالول اوعطربويول صحيح دي ، دهغو په وجه په روژه کي څه تاوان نه رامينځته کېږي هروخت چي وي ، همدارنګه که درانجو دلګولو څخه وروستو دلاړيو يا دپوزي له غلاظت سره دهغو اثر وليدل شو نو هم ورباندي روژه نه ماتېږي اونه ورباندي مکروه کېږي.
(بهشتی زيور ۳ حصه ۱۰ مخ بحواله قدوري ۴۵ مخ)

## دناپاکی په حالت کي روژه نيول

که څوك په خوب کي احتلام شو ( شيطان خطا کړ ) اوبې له دې چي غسل وکړي روژه يې ونيوله نوپه دې سره دهغه روژه نه فاسديږي (دناپاکي ګناه بيله ده. (علم الفقه ۳ج ۳۱ مخ)

## دروژې په حالت کي حلق ته دمچ ، مچر ، ګر د اونورو ننوتل

که دروژې په حالت کي په حلق کي مچ ننوتلو يا پکی ګرد ننوتلو ، نو روژه وربانډي نه ده ماته شوې ، خوکه په قصد سره داسي کول کېدل نوبيا روژه ماته ده (بهشتى زيور ۲حصه ۱۱ مخ بحواله عالمگيرى ۱ج ۲۹۸ مخ)

په کتاب الفقه على المذاهب الاربعه (۲ج) (۹۲۲) مخ کي دامسئله په تفصيل سره راوړله شوې ده چي دلاري ګرد ، داوړو ګرد ، مچ ، مچر اوداسي نور شيان که دروژې په حالت کي په حلق ننوزي اومعدې ته ورسيږي نو روژه وربانډي نه خرابيږي ، ځکه چي له دغو شيانوڅخه دځان ساتل ډير مشکل دی ، همدارنګه دغه حکم دهغه چالپاره هم دی چي دڅه شي دوړلو اويا ددرملودټکولو خوند يې په حلق کي محسوس شي. (عالمگيري پاکستاني ۲ج ۱۷ مخ )

## خولې ته داوښکو راتلل دروژې په حالت کي

که دروژتي په خوله کي يويادوه څاڅکي اوښکي داخلي شوې ، نو روژه وربانډي نه فاسديږي ، اوکه دومره زياتي شوي چي دهغو تريووالی په خوله کي معلومېدو اويا تردې هم زياتي راتولي شوې اوبيا هغه تيري کړای شوي نو روژه وربانډي خرابيږي ، په همدغه ډول دروژتي دمخ په خولو سره هم روژه ماتيږي. (فتاوى عالمگيرى اردو پاکستا نى ۲ج ۱۷ مخ ).

## دروژي په حالت کي دپوزي دويني جاري کيدل

پوښتنه: که دروژې په حالت کي دچا دپوزي وينه روانه شوه تردې
چي اثر يې په لاړيو کي هم ترسترګو شو آيا روژه يې روغه بلله کيږي ؟
جواب : په دې شرط چي دغه وينه نس ته ولاړه نشي نو ترهغه دروژې
لپاره هيڅ ضرر نه لري . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۰۶ مخ)

## دروژې په حالت کي ګل بويول

دعطرو ، ګلابو اوګل نرګس په بويولو سره ، اوپه جنابت (ناپاکي)
کي دډير وخت اوان دټولي ورځي په تېرولو سره روژه نه ماتېږي .
(کتاب الفقه على المذاهب الاربعه ۱ج ۹۱۹ مخ)

## دروژې په حالت کي په غوږ کي تيل يا اوبه اچول

دروژې په حالت کي که په غوږ باندي پخپله اوپه ننوزي اوکه يې
څوك پکښي واچوي نو روژه ورباندي نه ماتيږي ، خودتيلو په غوږ
کي اچولو سره په دې شرط روژه ماتيږي چي تيل لرمانه ته داخل شي.
(علم الفقه ۳ج ۳۲ مخ)

## په پوزه کي داوبوننوتل

پوښتنه : له روژتي څخه په داسي حالت کي چي روژه ورته يا دوه په
غلطي اويا په بې پروايي سره په پوزه کي اوبه ننوتلي نو دماغ پوري
اوبه ورسيدلې اويا خوتر دماغ پوري ونه رسېدې مګر ددماغ په
طرف کي دومره ليري ولاړې چي هغه ورته په تکليف شي ، نوپه
شريعت کي دهغه حکم څه دی ؟

ځواب : دپوزي په لاره له اوبورسېدلو څخه روژه نه ماتېږي ، خو که له پوزي څخه حلق ته اوبه ورغلې نوبیا وربانديې روژه ماتېږي دماغ ته داوبو په رسېدلو په شکل کي شك موجود دي نوځیرنه یې وکړی .

(امداد الفتاوی ۱ج ۱۷۲ مخ : ۲ج ۱۲۹ مخ)

## په سترګو کي درمل اچول

دانساني بدن له ورو سوریو څخه چي کوم تېل دانسان وجود ته ننوزي نوپه هغو باندې روژه نه ماتېږي ، همدارنګه که چا په اوبو باندي غسل وکړ ولمبیدلو اوپه وجود کي يې سوړوالی محسوس شو نو روژه یې وربانديې نه ماتیږي ، دغه رنګه په سترګو کي ددوا په څڅولو سره هم روژه نه ماتیږي که څه هم ددواخوند په حلق کي محسوس شي .

(عالمګیری پاکستاني ۲ج ۱۸ مخ)

## له خولي پریمنځلو څخه وروستو په خوله کي داوبو داثراتو پاته کیدل

هغه وخت چي سړی په خوله اوبه وګرځوي اولوندوالي په خُوله کي پاته شي نودهغه په تېرولو سره روژه په دې شرط نه ماتیږي چي وروستو له خولې پریمینځلو یو یا دوه واره لاړیه تو کړي شي ، ځکه چي له خولې پریمنځلو وروستو حتما څه اوبه په خوله کي پاته کیږي خو ، له یو یا دوه وار ه توکلو وروستو بیااوبه نه پاتي کیږي ، البته په لږ لوندوالي سره روژه نه ماتیږي اودغه لوندوالی دروژې لپاره ضروري نه دي.

(علم الفقه ۳ج ۳۲ مخ)

## پوزه دحلق په لوري سوڼ وهل

که یوچا دروژې په حال کې پوزه په دومره زور سره دحلق په لوري سوڼ وهله چې غلاظت یې حلق ته ولاړ نو روژه وربانديي نه ماتیږي همدارنګه دخولې څخه په بهېدونکو لاړیو هم روژه نه ماتیږي.

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۲ مخ بحواله عالمګیري ۱ج ۲۷۸ مخ)

## دغړېدلو په وخت شونډان په لاړیو لندیدل

که دغړېدلو په وخت یا کوم بل وخت دچا شونډان په لاړیو لانده شي اوبیا هغه لاړي تېري کړي، نودضروت په وجه روژه وربانديي نه فاسدیږي، همدارنګه که له خولې څخه ترڅه ځایه وبهېدلې خو له لاړیو څخه جلانشوي نوبیا یې بیرته راوګرځولي اوتېري یې کړې نو روژه وربانديي نه ده ماته شوې ځکه چې دهغو بهر ته راوتل پوره شوي نه دي، اوکه دخولې له لاړیو څخه جلاشوې نوبیا یې حکم بدل دی (یعني روژه وربانديي ماتېږي) (فتاوی عالمګیري پاکستاني اردو ۲ج ۱۷ مخ)

## په روژه کې دلاړیو تیرول

که دروژې په حالت کې چا په خوله کې راټولې شوې لاړي تېري کړې اویا یې دغاښونو ترمینځ کوم پاتي شوی شی تېر کړ، نودهغه روژې ته هیڅ تاوان نه رسوي، که قصدا یې همداسي وکړل نوهم روژه یې روغه ده، مګر که دهغه په غاښونو کې پاتې شي اندازه دومره وه چې په عام ډول ورته زیات ویل کېدل نوبیا که څه هم بې ارادې داسي شوي وي نو روژه وربانديي ماتیږي.

(کتاب الفقه على المذاهب الاربعه ۱ج ۹۲۰ مخ)

## دغاښونو په خلالولو (ټومبلو) له خولې څخه دځه شي تېرېدل

که دچا په غاښونو کي دغوښي يوه ټوټه يا دخوراك کوم بل شي بند ؤ هغه دغاښوټومبلو پروخت تېر شو مګر هغه له خولې څخه بهر نه ؤراايستل شوي نوبايد وکتل شي چي که ترچني کم ؤ نو روژه ورباندي نه ماتيږي ، اوکه ديوې چنې په اندازه يا تردې زيات ؤ نو روژه ورباندي ماته ده اوکه يوځل له خولې څخه راايستل شوی ؤ اوبيا بېرته خوړل شوی اوتېرشوی ؤ نوبيا په هر حالت ورباندي روژه ماتيږي ، که ترچني کم وي اوکه ترچني زيات وي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۱ مخ بحواله عالمگیری ۱ج ۲۰۸ مخ)

## په رمضان المبارک کي خوب کونکي له راپورته کېدلو سره سم دغاښونو وينه وليده

پوښتنه : درمضان غرمه وه ، يوڅوك ويده شو ، کله چي راپورته شو نو ويې ليدل چي غاښونه يې ويني شوي دي دايقيني نه وو چي دخوب پر وخت به لاړې تېري وي ، نو دروژې حکم څه دی؟

جواب : په دغه صورت کي روژه روغه اوپه خپل حال پاته ده .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۱۳ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۳۴ مخ )

## له وينو سره ګډې لاړې تېرول

که په خوله کي وينه راووتله اوبيا له لاړيو سره ګډه تېره کړله شوه نو روژه ورباندي ماته شوه خوکه وينه ترلاړيو کمه وه او دويني خوند په حلق کي نه معلومېدلو ، نوبيا ورباندي روژه نه ماتېږي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۳ مخ)

## دپان دسوروالي تېرول

پوښتنه : يوچا له پيشلمي څخه وروستو پان وخوړلو ، کله چي ورځ پيل شوه نودهغه سوروالی په لاړيو کي موجود ؤ ، ايا ددغو لاړيو په تېرولو سره روژه ماتېږي اوکه نه ؟ همدارنګه په داسي حال کي چي په خوله يې هم له پان خوړلو روستو اوبه ګرزولې وي دهغه حکم څرنګه دی ؟ کله له خولې پريمنځلو وروستو هم نرم سوروالی په لاړيو کي ترسترګوکېږي چي له مينځه وړل يې ډير مشکل دی ، نو په دې اړوند دشريعت حکم څه دی ؟

ځواب :دبهرني رنګ په لاړيو کي راتلل روژه ماتوي ، مګر پان چي له سهار کېدلو څخه له مخه خوړل شوی دی اودهغه هيڅ يوڅه په خوله کي پاته نه دي اوخوله يې پريمنځلې ده ، نوبيا که په ورځ کي دلاړيو سوروالي وليدل شو اوبيا هغه لاړيې تېرى کړلي شوې نو ورته دروژې دفاسدونکو حکم نشي ورکول کېداى ، نرمي سرې لاړي روژه نه ماتوي .

ليکن احتياط ضروري دی اوترڅو چي کيداى شی نوبايد دسوروالی اثر پرې نه ښودل شي ، خوله بايد ښه پريمنځله شي ، اوکه چا په ماتېدو دروژې کي شك لاره ، نوهغه دي قضاء راوړي .

(فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۴۱ ۱۴۲ مخ)

## يوڅوک په خوب ويده شو اوپان يې همداسي په خوله کي پاته شو

پوښتنه : څو خلګو دروژې اراده لرله ، له پېشلمي وروستو دپان له خوړلو سره سم ويده شول ، کله چي سهار راپورته شول نودچا په

خوله کي پان تول موجود ؤ ، دچا په خوله کي ديوې چڼي برابر اودچا په خوله کي هيڅ هم موجود نه ؤ ، نو په دغه صورت کي دچا ، چا روژه سمه ده اوپه اړوند يې شرعي حکم څه دي ؟

ځواب : که چا دويده کېدلو په وخت کي پان په خوله کي واچولو اوهمداسي پسي ويده شو ، پان ترسهاره پوري دهغه په خوله کي ؤ ، نو روژه يې ماته ده اوهغه څوك چي له پان څخه يې هيڅ په خوله کي پاته نه دي نومعلومه ده چي تېر کړی يې دی اوداسي به بلل کيږي چي وروستو له سهار کېدلو تېر شوی دی اودچا په خوله کي چي اچول شوی پان تول موجود دی نوهم غالب گمان دادی چي دهغه لاړی به تېري شوې وي ځکه چې دحکيمانواوډاکټرانو داخبره وربانديې دليل دی چي هغوی د« اصل السوس » اوداسي نورو درملو په داسي وخت کي په خوله کي داچولو سپارښتنه کوي چي ناروغ پريوزي ، نو که ددغه درمل لاړې نس ته نه ځي نوبيايې فائده څه ده ، نوکله چي تېريدل ثابت شو نوبيا په خوب کي دخوراك په کولو سره صرف قضا واجبيږي اوکه يې له ويده کيدلو څخه مخته په خوله اوبه ونه لغړولي اويا په خوله کي ديوچڼي اويا ترهغې زيات څه پاته شول نوقضايې واجب ده ، اوکه تردې کم ؤ نوبيا روژه وربانديې نه فاسديږي .

(امداد الفتاوی ۱ج ۱۷۲ مخ)

## دگوچڼيو ډېرو يا شگو تېرېدل

پوښتنه : که دچا په خوله کي شگي ولوېدلې اوبيا يې واپس توکړې او وروستو يې لاړې تېري کړې ، وروستو په غاښو کي معلومه شوه چي شگه پاته ده نو په هغې باندي روژه ماته شوه اوکه نه ؟

جواب : په دغه صورت کي روژه نه ده ماته شوې .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۰۹ بحواله ردالمحتار ۶ج ۱۳۴ مخ)

### دمصنوعي (جوړشوي) غاښ حکم

پوښتنه : که دچا په خوله کي دتل لپاره مصنوعي غاښ موجود ؤ چي نه يې بوی لرلو اونه يې خوند ،ايا دروژي په حالت کي ددغه غاښ په خوله کي ساتل روژه مکروه کوي اوکه نه ؟

ځواب : روژه ورباندي نه مکروه کېږي . (امداد الفتاوی جديد ترتيب ۲ج ۱۴۲)

### د(پائيريا) مرض په وجه په خوله کي دنونو راتلل

پوښتنه : دپائيريا دمرض په وجه له وريو څخه نوونه راځي ، نوهغه له لاړيو سره تېرول روژه ماتوي اوکنه ؟ داراته وښايئ چي هغه څه چي په خوله کي پيداکېږي که په قصد اوياخطا له لاړيو تېر شي نوحکم يې څه دی ؟ اوکوم شي چي له بهر نه په خوله کي اچول کېږي دمثال په ډول دويديدلو پر وخت يوچا پان په خوله کي واچول بيا دراپورته کېدلو تروخته په خوله کي ؤ نوآيا ددغو دوو ترمينځ فرق شته اوکنه ؟

ځواب : دپائيريا دمرض نوونه دپان په ټولو کړل شوو لاړيو باندي قياس کول اودهغه دروژي له فاسدونکو څخه بلل صحيح نه دی ، پان له بهر څخه خولې ته اچول کېږي اودهغه په وجه داټولي شوې لاړي په عادي لاړيو باندي غالبيږي ، اودپائيريا دمرض نوونه داسي نه دي ،هغه يو ځانګړی مرض دی چي نونه دننه په خوله کي پيداکيږي اوتري ځان ساتل تروس لاندي کارنه دي همدا رنګه دنوو

اندازه یې هم لږ وي اولاړیه  ورباندي زیاتي وي نوځکه باید دروژي له فاسدونکو ونه بلل شي.

(فتاوی رحیمیه ۳ج ۱۰۹ مخ بحواله عالمگیری ۲ج ۱۳۱ مخ)

یوچا په پیشلمي دومره خوراك وکړ چي په ورځ کي یې تیغونه راختل اوله هغوسره اوبه خولې ته راتلې نو له هغو څخه په روژه کي څه تاوان نه پیښیږي.  (فتاوی رشیدیه کامل ۳۷۱ مخ)

## دویني درولو لپاره ددرملو استعمالول

پوښتنه: که له وریو څخه وینه اوداسي نورڅه راتلل نو په هغه حالت کي دداسي درملو اوموادو کارول روا دي اوکنه چي وینه ورباندي ودرول شي؟

جواب: دغه کار روا دی، خوباید دهغوله کارولووروسته سمدستي خوله ښه ووینځله شي ترڅو یې اثرات ترلږمانه ونه رسیږي، اوکه وینه درونکي شیان داسي وي چي عمومانس ته نه تېریږي نوهم ځان ورنه ساتل ښه دي، ځکه چي بهر حال مکروه تنزیهي خو دی، که ښه په احتیاط سره هغه درمل په خوله کي واچوئ اوبیا ورته غاښونه پاك پریمنځي ترڅو نس ته څه شي ولاړ نشي نوبیا مکروه تحریمي نه دی، خلاف اولی یعني مکروه تنزیهي خو ضرور دی.

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۰۴ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۵۲ مخ)

## په مسواك اوسکرو باندي دغاښونو پریمنځل

وړه کړي شوې سکروټه اودغاښونو دوا دواړه په غاښونو پوري موښل دروژي په حالت کي مکروه دي، اوکه وراڅخه یوڅه هم تېر

شي نو روژه وربا ندي ماتېږي ، اوپه مسواك باندي وينځل صحيح دی ، که وچ مسوا ك وي اوکه تازه ، دنيم مسواك که همدا اوس داپرې کړی شوی هم وي اودهغه تريخوالی په خوله کي معلومېږي هم لا روژه وربا ندي نه مکروه کېږي .

(بهشتی زيور ۳حصه ۱۳ مخ بحواله مراقي الفلاح ۲۱۰ مخ)

## دمسواک ديوکوچني شي تېرېدل

پوښتنه : دمسواك دوهلو پر وخت دهغه يو کوچنی لرګی ، پوستکي يابل څه تېر شو اودکوشش کولو باوجود بېرته راونه ايستل شو ، ايا روژه وربا ندي فاسدېږي ؟

ځواب :په غاښو کي بند دخوراك پاتي شوني که دچني تر اندازې کم ؤ اوتېر شو ، نو روژه وربا ندي نه ماتېږي ، وجه يې داده چي له هغه نه دځان ساتل مشکل دی ، نوله دې څخه معلومه شوه چي دمسواك په ذرو هم روژه نه ماتيږي .

(احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۵ مخ)

## دتمباکو په سوځول شوې پاڼه دغاښونو وينځل

پوښتنه : ځيني مېرمني دتمباکو پاڼې سوځي اوبيا يې په ايره يا له اوبو يا نورو سره په ګډيدن باندي درمضان المبارك په مياشت کي غاښونه مينځي ، دهغو دغه کار څنګه دی ؟

جواب : که غاښونه په موښلو سره يريمنځل شي اولړمانه ته يې هيڅ اثر ونه رسيږي نوبيا روژې ته تاوان نه رسوي.

(فتاوی دارالعلوم ۴ج ۴۰۹ مخ)

## دغاښو پريمنځلو ددوا ، او پوډرو کارول

حنفي فقهاؤ دروژې په حالت کي دمسواك وهلو اجازه کړېده که څه هم دوچ لرګې وي چي پکښي يوډول خوند موجود وي ، مګر دغاښو دخاصي دوا اوپوډرو (ټوت پېسټ يا ټوت پاوډر ) کارول له هغه څخه بېل دي ، په دغو کي ډېر تيز خوند موجود دی ، په هغو باندي نه د مسواك اطلاق کېږي اونهورباندي دمسواك دسنت په ځای کولو ضرورت شته ، نوځکه بغير له سخته عذره دهغو کارول له مکروه والي خالي نه دي ، خوکه عذر موجود ؤ نوبيا يې کارولای شي .

(جديد فقهي مسائل ۱ج ۱۰۲ مخ)

## په روژه کي قی وهل

پوښتنه : په قی وهلو سره روژه ماتېږي اوکه نه ؟

جواب : که په ډکه خوله سره ئي قی وواهو او ورنه يې ديوې چڼې په اندازه يا تردې زيات دپوهاوي باوجود قصدا تېر کړ نو روژه يې ماته شوه قضاء ورباندي فرض ده او کفاره ورباندي نشته اوکه يې په خپله رضا اواراده په ډکه خوله سره قي وکړ نوبهر حال ورباندي روژه ماته ده که څه هم واپس يې نه وي تېر کړي اوکه قی په ډکه خوله سره نه ؤ نوبيا ورباندي روژه نه ماتيږيْ. (احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۳ مخ)

## په قصدقي وهل او څه بيرته واپس تيرول

که يو چا په قصد سره قي وکړ نو که خوله ورڅخه ډکه نشوه نو روژه ورباندي نه ماتيږي همدارنګه هغه قی چي قصدا وکړل شي اوخوله

ورنه ډکه نشي که بې اختياري سره تير شي نو روژه وربانديې نه ماتيږي. (علم الفقه ۳ج ۳۲ مخ)

## په غير ارادي ډول قی وهل

يو چا ته بغير له خپله اختياره قی ورغی نو روژه يې وربانديې نه ماتيږي هغه که کم وي اوکه زيات خو که چا په قصد سره قی وکړ اوخوله ورنه ډکه شوه نو روژه يې ماته شوه ، اوکه تردې کم ؤ نو په قصدي قی هم روژه نه ماتيږي ، همدارنگه که لږ قی انسان ته ورغي او واپس پخپله تيرشو نو هغه روژه پري نه ماتيږي اوکه په قصد سره تېر کړل شي نوبيا وربانديې روژه ماتيږي .
(بهشتی زيور ۳حصه ۱۲ مخ بحواله فتاوی هنديه ۱ج ۲۰۲ مخ )

## له قی وهلو وروستو په قصد سره خوراک کول

که يوچا له قي وهلو وروستو دافکر وکړ چې روژه يې ماته شوه ، اوبيا يې په قصد سره خوراك وکړ او روژه يې ختمه کړه ، نوقضاء وربانديې واجب ده ، اوکفاره وربانديې نشته . (بهشتی زيور ۳ج ۱۳ مخ بحواله عالمگيری ۱ج ۲۰۴ مخ)

## د روژې په حالت کي په سر کي دتيلو جذب کيدل اوپه مشترکه برخه کي دوچ شي داخلول

که چيري يوچا په سر تيل واچول يا يې رانجه ولگول يا سرې دخپلي مشترکې برخي په سوري کي کوم وچ شي داخل کړ چې سر يې په بهر ؤ اويا يې پکښي لوند شي داخل کړ اوهغه دحقني (ددبرې دننه برخه ترځايه ونه رسېدو ، نوځرنگه چې هغه دبدن داخلي برخي ته نه دی

رسيدلي نوځکه ورباندي روژه نه فاسديږي اونه قضاء اوکفاره پرې لازميږي اوکه سرى په خپله دبره كي وچ شيان لكه كپا ، څيره اوداسي نور داخل كړل اوټول پكښي پټ شو ، اويا يې پكښي لوند شي ننيستلو اودحقنې «ددُبُرې دننه برخه» ترځايه ورسېدلو نو روژه ورباندي فاسديږي اوصرف قضا لازميږي ، همدارنګه كه يوچا دخپل ذكر په سوري كي تيل يابل څه واچول كه څه هم دپيچكاري په ذريعه وي ، نو سره له دې چي مثانې ته داخل هم شي روژه ورباندي نه فاسديږي . (بهشتى زيور ۱۱ حصه ۱۰۶ مخ)

## دروژې په حالت كي دمېرمني ښكلول ، لاس اړول اوداسي نور

پوښتنه : آيا دروژې په حالت كي دمېرمني ښكلول او ورباندي لاس اړول او نور څه صحيح دي اوكنه ؟

ځواب : دغه كارونه په روژه كي روا دي خو ځوانان دي داسي نه كوي ، ځكه چي په هغو كي دجماع كولو ويره ډيره ده

(فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴۱۲ مخ)

## دروژې په حال كي دخاوند اوميرمني دتناسلي غړيو يوځاى كيدل

پوښتنه : زيد دروژې په حال كي له خپلي ميرمني سره مينه كوله يايې په غيږه كي نيوله يا دوئ دواړو خپل تناسلي غړي سره ولګول چي شهوت ورځخه پيداشو ، اوبيا دواړه سره جلاشول ، آيا روژه يې روغه ده اوكنه ؟

جواب : په دغه صورت كي روژه پخپل حال پاته ده ، خو ځوانان بايد داسي ونكړي . (فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴۰۷ مخ)

## په روژه کې دمذيو راوتل

پوښتنه : په روژه کې له مېرمنې سره دمینې کولو اویا بل څه په وجه په جوش باندې مذی راووزي نوحکم يې څه دی ؟

جواب : دمینې او نورڅه په وجه چې کومې اوبه راوزي هغو ته مذي ويل کیږي ، دهغو په راوتلو سره روژې ته کوم تاوان نه رسیږي ، خودمنيو په وتلو سره روژه ماتیږي ، که دښکلولو اوغیږ نیولو په وجه دروژې ماتېدلو ویره وه نوبیا دغه کار نه دی روا .

(احسن الفتاوی ۴ج ۱۴۱ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۲۳ مخ )

## دروژې په حالت کې صرف په لیدلو سره دانزال کیدل

که په غیر ارادي ډول دصرف لیدلو یا فکر سوچ وهلو په وجه انزال ( دمنیووتل ) وشي ، نو داحتلام په څېر روژه نه ماتوي یعني دیو چا صرف دشهوت پیدا کونکي شي په لیدلو اویا سوچ کولو انزال وشو ، نودهغه روژه وربانديې نه ده ماته شوې (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ۱ج ۹۲۰ مخ)

که یوڅوك دخوب په حال کې شیطان خطا کړ (احتلام شو ) اوبغیر له غسل کولو يې روژه ونیوله ، نو روژه يې نه ده فاسده ، همدارنګه دیوچا دښځې دخاص اندام دلیدلو سره سم انزال وشو ، نو روژه يې وربانديې نه ده فاسده شوې . (فتاوی هندیه ۱ج ۲۰۳ مخ قدوري ۴۵ مخ)

## سهار راختلو سره سم دمیرمنې څخه جلاکیدل

یوچا بغیر له څه سببه دروژې اراده ختمه کړې وه ، اویايې په دې خيال چې دشپې څه وخت لاتراوسه پاته دی له میرمنې سره جماع

کول اوياځه خوړل پيل کړل ، نوځرنګه چي دروژې اراده يې زړه ته راغله اويا چي ځرنګه چي شپه ختمه اوسهار پيل شو نوسمدستي له ميرمني څخه جلاشو اويا يې ګوله (دودی) له خولي څخه ليري کړه ، نو که له جلا کيدلو وروستو مني ووتل هم روژه يي نه ده فاسده شوې اودغه انزال داحتلام په حکم کي دی .

(بهشتی زيور ۱۱ حصه ۱۰۶ مخ بحواله ردمختار ۱ج ۱۵۰ مخ)

## دروژې په مياشت کي دجنابت غسل سهار کول

پوښتنه : آيا دروژې په مياشت کي خودجنابت غسل دسهار کولو په وجه په روژه کي څه نقصان نه رامينځته کوي ؟

جواب : نه ، له دې څخه په روژه کي هيڅ خرابي نه راځي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۱۴ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۳۸ مخ)

## په روژه کي خشت دسمال په سراچول

پوښتنه : پو چا ددې لپاره چي روژه نيول ورته اسان شي په قصد سره دسمال خشت کړ اوپه سريې وتاړه ،ايا روژه ورباندي مکروه کيږي اوکنه ؟

جواب : دابوداؤد شريف اوردالمحتار له عباراتو څخه معلوميږي چي صحيح اومفتی به قول دادی چي داسي کول مکروه نه دي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۰۵ مخ)

## پ روژه کي لندي جامي اغوستل اوباربارغسل کول

پوښتنه : په روژه کي دلندو جامو اغوستل او دري يا څلور واره غسل کول روا دي اوکه نه ؟ او روژې ته فرق ورکوي اوکنه ؟

جواب : په دې سره روژې ته هيڅ فرق نه ورځي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۰۷ مخ بحواله عالمګيري مصري ۱ج ۱۸۶ مخ)

## دګرمي په وجه په روژه کي په خوله اوبه ګرزول

په روژه کي دګرمي په وجه په خوله اوبه ګرزول ، په پوزه کي اوبه اچول ، تراوبو وتل ، لنده جامه په بدن اچول ، په دغو ټولو باندي روژه نه ماتيږي. (علم الفقه ۳ج ۳۳ مخ)

## دروژې په حالت کي وينه کښل

پوښتنه : دروژې په حالت کي دپيچکارۍ په ذريعه دويني راکښل دروژې له فاسدونکو څخه دی او که نه ؟

جواب : په دې باندي روژه نه ماتيږي خو که ددې ويره وه چي دويني په کښلو سره به دغه سړی دومره ضعيف شي چي دروژه نيولو توان به نه لري نو بيا مکروه دي . (احسن الفتاوی پاکستاني اردو ۴ج ۴۲۵ مخ)

## شپږم باب

## هغه شيان چي روژهورباندي فاسديږي اوصرف قضايې لازميږي قضا څه ته ويل کيږي ؟

په روژه کي خوړل څښل اوجماع پريښودل فرض دی ، نو کله چي ددغوفرضو په خلاف څه وکړل شي نوروژه ورباندي فاسديږي فرق صرف دادی چي که کوم داسي يوشي نس ته ننه ايستل شي چي ورنه دګټي اخستلو خيال وي لکه غذا (خوارک) دوا اوداسي نور نوپه دغه حالت کي بايد قضا راوړل شي اوددغه جرم کفاره هم ورکړله شي ، او که په قصد سره نه ، بلکه پخپله يوشي تير ځو اودګټي رسولو

خيال ورسره نه ؤ نوبيا ورڅخه صرف قضاء لازميږي همدا رنګه که يوداسي کار وکړل شي چي په خوند کي له جماع سره سم وي نوقضاء اوکفاره دواړه لازموي اوکنه نوصرف قضاء لازميږي.

نيتجه داراوځي چي روژه فاسدونکي شيان په دوه ډوله دي يو هغه چي له امله يې صرف قضا لازميږي بل هغه چي په سبب يې قضاء اوکفاره دواړه لازميږي.

دپورته ذکر شوو عباراتو مفهوم په اسانو ټکو کي په دې ډول هم بيانيدلای شي چي په کومو خبرو يا شيانو چي روژه ماتيږي له هغو څخه څه داسي دي چي روژه وربانديں له مينځه نه ځي مګر دروژې په بدله کي صرف يوه بله روژه نيوله کيږي چي ورته په شريعت کي قضاء ويل کيږي.

اوځيني کارونه داسي دي چي دهغو په وجه روژه ماتيږي ، له هغې وروستو يوه روژه دقضا او دوه مياشتي نوري پرله پسي زياتي روژې نيولي کيږي اوهغه ته په شريعت کي کفاره ويله کيږي چي پوره بيان يې په راتلونکي کي ستاسومخي ته راځي دلته دقضاء مسئلي تربحث اوځيني لاندي نيولي کيږي په کتاب الفقه على المذاهب الاربعه کي دقضاء دغه اصول ليکل شوي دي.

کوم شيان چي نس ته په داسي ډول تللي وي په کوم ډول چي شرعا دهغوتلل وي دمثال په ډول ذپوزي ، خولې ، غوږونه ، له مخکښي اوشاتني لاري يا هغه زخم چي دماغ ته رسيدلي وي هغو ته :اخلول پکښي يادچلم اوسګريټ څکول نسوار اوسوغ کول اونور هم پکښي

داخل دي ، له هغو ټولو څخه روژه ماتېږي او قضاء واجبېږي خو کفاره وربانديي نشته . (کتاب الفقه على المذاهب الاربعه ۱ج ۹۲۲ مخ)

## دقضايې روژو دنيولو طريقه

دقضا دروژو نيول په پرله پسي ډول ضروري نه دی ، هغه که درمضان المبارك دروژو قضاوي اوکه دنورو روژو ، کله چي دقضايې روژو نيولو وعذر ختم شي نوسمدستي دروژو نيول لازمي نه دي بلکه اختيار دي هر کله چي هغه يې نيول وغواړي هغه وخت يې نيولای شي همدارنګه پکښي دلمانځه په څېر ترتيب ساتل هم فرض نه دی. (علم الفقه ۳ج ۲۹ مخ)

## دقضاء دروژو نيولو سمه طريقه

که له چا څخه دعذر په وجه روژه قضا شوه ، نوکله چي عذر پای ته ورسيږي نوسمدستي بايد دهغې قضاء راوړي ، په توان او ژوند باندي باور نشته ، دقضاء په راوړلو کي انسان ته اختيار دي چي په پرله پسي ډول يې راوړي اوکه يوه ، يوه ، يا دوه ، دوه .

**که خوک دډېرو کلونو دروژو قضاء راوړي نودکال معلومول پکښي ضروري دی**

دلږو روژو په قضا راوړلو کي دورځي ، نيټې اودقضاء دنيت چي دفلانی ورځي يا نيټې قضاء راوړم ضروري نه دی ، بلکه څومره روژې چي قضاء شوې دي هغومره بايد ونيولي شي ، مګر که ددوو کلونو لږ ،لږ روژې قضاء شوې وې اوپه يوځای يې دهغو ټولو قضاء راوړله نوبيا پکښي دکال معلومول ضروري دی ، يعني داسي نيت پکښي کول چي دفلاني کال روژې نيسم . (بهشتی ۳حصه ۶مخه بحواله قدوري)

**که چا لا د تېر رمضا ن قضاء نه وه راوړې اوبل رمضان وربا ندي راغی**

یوچا لاتراوسه دتېر رمضان المبارك دروژو قضانه وه راوړې چي وربانديي بل رمضان راورسيدو نوخير دی ددغه رمضان فرضي روژې دي ونيسي ، اوبيا دي له اختر څخه وروستو هغه قضاء راوړي ، اودومره ځنډ کول ډيره بده خبره ده . (بهشتی زیور ۳ حصه ۶ مخ)

**په رمضان المبارک کي بيهوښه کيدل**

که يوڅوك درمضان المبارك په مياشت کومه ورځ بې هوشه ؤ نو دبي هوشې له ورځي بغير به دهغوټولو ورځو قضا راوړي په کومو کي چي بيهوشه نه ؤ په کومه ورځ چي هغه بې هوښه شوي دي دهغې قضا ځکه لازمه نه ده چي دهغې ورځي روژه دنيت په وجه صحيح شوې ده ، اوکه يې په دغه ورځ روژه نه وه نيولې اويا يې روژه نيولي وه خوبيا يې حلق ته دوا واچوله شوه اوهغه تيره شوه نوبيا وربانديدغي ورځي قضا هم واجب ده اوکه يوڅوك په شپه کي بي هوښه شو نوپه کومه شپه کي چي بيهوښه شوی دی نودهغې يوي ورځي قضا وربانديي واجبه نه ده نوري چي څو ورځي بي هوښه ؤ دهغو ټولو ورځو قضاء وربانديي واجب ده اوکه يې په دغه شپه دراتلونکې ورځي دروژې نيت نه ؤ کړی اويا يې په ورځ کي په خوله کي دوا واچوله شوه اوبيا تېره شوه نوبيا به دهغې ورځي دروژې قضا هم راوړي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۳ مخ بحواله قسیتی ۴۰ مخ)

## که یو څوک د رمضان المبارك ټوله میاشت بې هوښه ؤ

که یو څوك ټوله میاشت بې هوښه ؤ نو هم به د ټولو روژو قضا راوړي او داسې به نه وايې چې ټولې روژې به راته بخښل شوي وي څوکه ټوله دروژې میاشت یو څوك لیوني ؤ اوپوره میاشت يې په لېونتوب کې تېره شوه نودهغې میاشتې دیوې روژې قضا هم ورباندې واجب نه ده ، اوکه درمضان په میاشت کې کله دورځې لیونتوب ورڅخه ختمیدو اوعقل یې پخپل حال کیدو نوله دغه وخته دې روژه نیول پیل کړي ، اوڅومره ورځې چې په لېونتوب کې تېرې شوې دې دهغو دې هم قضاء راوړي اوکه هغه ته دخپل نیت کولو اونه کولو حال معلوم ؤ نودخپلې پوهې سره سم دې عمل وکړی ، که ورته دنیت کولو علم ؤ نو دهغې روژې قضاء دې نه راوړي ، اوکه ورته دنیت نه کولو علم ؤ نودهغو روژو دې قضاء راوړي . (علم الفقه ۳ج ۳۸ مخ)

## دلیونتوب په حالت کې روژه

دلیونتوب په حالت کې روژه نیول معاف دې ( یعنی دهیڅ یوې روژې قضاء ورباندې فرض نه ده ) که داسې لیونتوب ؤ چې دشپې په یو وخت کې هم ورڅخه دلیونتوب حال نه ختمیدو ، نودهغې زمانې دروژو قضاء هم ورباندې لازمه نه ده اوکه په ورځ یا شپه کې یوڅه وخت دهغه عقل پخپل حال کیدو نوبیا به دهغې قضاء راوړي . په لیونتوب کې چې هرڅومره روژې قضاء شوې وي دهغو نه دقضاء راوړلو ضرورت شته نه دفديې ورکولو اوکوم وخت چې دهغه تکلیف ښه کمیږي نودهغو روژو قضاء راوړل ضروري دې.(علم الفقه ۳ج ۳۸،۳۹ مخ)

## دروژې په حالت کې لرګې دځان په لوري کش کول

که يوچا په قصد سره دښه بوی لرونکي شی وسوځي اودهغه لوګی يې دځان په لوري دساه په ذريعه ورکش کړ نوپه داسي حا ل کي چي روژه ورته ياده وي دلوګې په وجود ته داخلولو سره په هر صورت روژه ماتيږي هغه که دعنبرو وي که دګربتي وي اوکه دهمداسي بل څه ، ځکه چي روژه لرونکي ته له دغوشيانو دځان ساتل ممکن ؤ او که دروژه لرونکي بلااختيار اوبلا قصده لوګی تېر شو نو ورباندي روژه نه ماتېږي ځکه چی ځان ساتل ترې قطعا امکان نه لري ، که هغه خوله بنده کړی نودپوزي له لاري داخليږي او دروژې په حالت کي مړي ته ديوڅه شي سوځولو او بل چاته دنور څه کولو مسئله په دې کي شامله نه ده يعني په هغه باندي روژه نه فاسدېږي ،ځکه چي هغه دبل چا لپاره دودکول دي دځان لپاره نه دي.

## له دغې مسئلې څخه ډير ورونه بې غمه وي په دې اړوند ډير احتياط کول پکار دي

يادونه: په دې خبره هم پوهېدل ضروري دی چی دغه مسئله په مشکو ،ګلابو او په نورو ښه بوی لرونکو په بويولو باندي بايد ورقياس نشي ځکه چي په نامه خوشبو او هغه لوګی چي داخلي پخلي داستعمال په وجه پيداکېږي، او دغه لوګي چي په قصد سره تر حلق تېرول کېږي ډير زيات فرق دی.

## دلوګې په اړوند دمولانا تهانوي رحمه الله فتوی

که روژه لرونکي ته له داسي څه څخه ځان ساتل بغیر له نقصان او تکلیفه ممکن وو چي هغه ددند یا لوګی حلق ته داخلېدلو باعث ګرزیدو نو دهغه سره سره يې دغه کار وکړ نو روژه يې فاسده شوه.
(امداد الفتاوی ج۱ مخ ۱۳۸)

که یو چا لوبان یا ګربتی بله کړه او بیا یي ساتلې وه او بویوله يي نو په دې سره دهغه روژه ماتېږي او صرف قضا يې ور باندي لازمه ده مګر دکیوړې دګل ګلاب او نورو خوشبو ي بویول چي لوګی ونه لري صحیح دی.
(بهشتی زیور حصه ۳ مخ۱۱)

## په روژه کي دوا بویه ول

پوښتنه : هم تلوس یوه دوا ده چي له ناشادر او چونی څخه په ګډه جوړه شوې ده له هغې څخه شیشې ډ کیږي او بویول کیږي او دهغې تېزي دماغ ته رسېږي ایا دهغې په بویولو روژه ماتېږي او که نه؟
ځواب : په دغه ډول روژه ماته ده قضاء لازمه ده څرنګه چي په درمختار کي راځی چي که دروژې له یاد سره سره حلق ته لوګي ننوزی نو روژه درباندي ماتېږي که څه هم دعودو او عنبرو وي.
(فتاوی دارالعلوم ج٤مخ ٤١٨ بحواله رد المحتارج۲ مخ ١٣٤)

## که دروژې په حالت کي بې اختیاره اوبه تیري شوې

یو چا دروژې په حالت کي په خوله اوبه ګرزولې اوپه بې فهمي سره ورنه په داسي حال کي چي روژه يې په یاد وه څه اوبه تېري شوې .نو روژه درباندي ماته شوه ،قضاء واجبه ده خو کفاره درباندی نشته.
(بهشتی زیور حصه۳ مخ۱۱)

## دارمېږي پر وخت داوبو يا واوري تيريدل

که يو چاته ارمېږي ورغی او هغه خپله خوله داسمان په طرف پورته کړه او پکښی داوبو ځاځکي له ناوې او يا بل ځه ځخه ولوېدل ،نو دهغه روژه فاسده شوه صرف قضا به راوړي کفاره ورباندي واجب نه ده او همدارنگه که دباران اوبه ياواوره دسړي حلق ته داخله شو نو روژه پرې ماته شوه او صرف قضا واجبه ده ،همدارنگه که يو چا دروژه لرونکي په طرف يوشی غوزار کړ او هغه دروژتي په حلق کي ولگېدلو ،نو هم روژه ماته او قضا واجب ده ،همدارنگه دلمبېدلو په وخت يې په خوله کي اوبه ولاړې او يا ويده روژتي په خوب کي اوبه وچښلې په دواړو صورتونو کي روژه ماته او قضا يې واجب دی خو کفاره نشته. (فتاوی عالمگيري اردو پاکستاني ج۲ مخ۷)

## دقصدي توخي په وجه کوم څه دحلق پورتنۍ برخې ته راتلل

دقصدي توخي او پرنجي په وجه چي کوم څه دحلق پورتنۍ برخي ته له معدې ځخه راشي نو روژه ورباندي ماتېږي ،دبلغمو دراايستلو او توکلو حکم په دې کي شامل نه دی ځکه چي دداسي کړلو باربار ضرورت پېښېږي خوکه هغه خولې ته له رارسېدو وروستو واپس تېر کړل شو نو بيا ورباندي روژه ماتيږي . (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ مخ ۹۹۳)

## دروژې په حالت کي دويني تيرېدل

پوښتنه: که دتکسير (له پوزي ځخه بهېدونکي)وينه دچاتېره شوه نو روژه يې ورباندي ماتېږي او کنه؟

ځواب : روژه ورباندي ماتېږي صرف قضا واجب ده او کفاره نشته.

(احسن الفتاوی پاکستانی ج ۲ مخ ۴۲۹)

## په روژه کي دخاورو خوړل

که يو چا په روژه کي دسر وينځلو خاوره وخوړله نو روژه ورباندي فاسدېږي صرف قضا لازمه ګرزي او که ددغي خاوري خوړل دهغه عادت ؤ، نو بيا ورباندې قضا او کفاره دواړه واجب دي.

(عالمګېري اردو پاکستاني ج۲ مخ ۱٦)

## په روژه کي دوړې ډبري يا دترامې دکوچنۍ ټوټې خوړل

که يو چا يوه کوچنۍ شاني ډبره او يا دترامې يوه ټکړه او يابل داسي شی وخوړلو چي خلك يې خوري، او يا داسي يو شی وو چي خلك يې دغسی نه خوري خو که ضرورت پېښ شی،نو ددرملو په څېر يې خوري نو هم ورباندي روژه ماتېږي او قضا او کفاره دواړه واجب دي

(بهشتی زيور حصه ۳مخ ۱۲)

## په روژه کي د ژامي يا دمخ دغاښ کښل او يا پکښې دوا اچول

پوښتنه: دروژې په حال کي دمخ دغاښ يا دژامي دغاښ کښل او يا په خوله کي دوا اچول روا دي او که نه؟

ځواب :دسخت ضرورت په وجه روادی، او بې له ضرورته مکروه دی که وينه يا دوا نس ته تېره شي او ترلاړيو زياته يا ورسره سمه وي او دهغو خوند په حلق کي معلوم شي نو بيا ورباندي روژه ماتېږي (او صرف قضا واجبيږي .(احسن الفتاوی پاکستاني ج٤ مخ ٤٢٦ بحواله رد المحتار ج۲ مخ ۱۰۷)

## ايا دغاښ وينه روژه فاسدوي؟

پوښتنه: دروژې په حالت کي له غاښ څخه وينه را ووتله او نس ته لاړه ، نو ايا دروژې صرف قضا لازمه شوه او که کفاره هم؟

ځواب : که کمه اندازه وینه وه او لاړې ورباندي زیاتي وې نو بیا
ورباندي روژه نه ماتېږي خو که دوینو خوند په حلق کي معلوم او
محسوس شو نو بیا روژه ماتېږي .همدارنګه که وینه تر لاړیو زیاته
او یا ورسره سمه وه نو هم روژه ماتېږي
(فتاوی رحیمیه ج ۳ مخ ۱۰۸ بحواله عالمګیري)

## په غاښ کي دوړو شوو شیانو داچولو حکم

دغاښ په مېنځ کي دداسي واړه شوو شیانو اچول چي توکل کیدای
او تېریدای شي ،نو هغه که څه هم تر یوې چني کم وي نو په خوړلو
یې روژه ماتېږي . (کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ مخ ۹۳۳)

## دپوزي، غوږو او سترګو مسئلې

پوښتنه: (۱) دروژې په حالت کي دغوږونو سترګو او نورو په سریو
کي دیوشي لکه تیل،عادي اوبه،او دڅه بل شي اوبه او یا نور وچ
پوډر او همدارنګه نور شیان ددوا په ډول اچول او ددماغ دتقویت
لپاره دتیلو ،عادي اوبو او یا دڅه بل شي دابو کارول څنګه دی؟
(۲) په اوبو کي دباد خارجول، غوټه وهل او غرغره کول څنګه دی؟
(۳) په سر باندي دپلستر ډوله شیان لګول، په لړمانه یا بل ژور زخم
باندي مرهم ،تیل او داسي نور ددرملو په ډول لګول روادي او که نه؟
او که روا نه دي نو که روژه لرونکی په دغه مسئله پوهېدلو یانه
پوهېدلو او په دغو تېرو شویو کارونو کي یې یو وکړ نو په کوم
صورت کي قضا او په کوم صورت کي کفاره لازمېږي؟

ځواب :(۱)په پوزه او غوږو کي دلمدې دوا اچولو سره روژه ماتيږي همدارنګه که دوچ شي دننه وجود ته رسېدل يقيني وي نو روژه ورباندي فاسدېږي او که رسېدل يې يقيني نه وي نو بيا نه فاسديږي (۲) په سترګو کي ددوا په اچولو او په سر باندي دتيلو او نورڅه لګولو سره روژه نه ماتېږي همدارنګه که دغو ځايو نو ته اوبه ورسېږي نوهم پرې روژه نه ماتېږي (۳) په اوبو کي دباد په خارجولواو غوټه کولو باندي هم هيڅ نه کېږي .اوکه اوبه دوجود داخل ته ننوزي نو بيا روژه ماتېږي څرنګه چي په استنجا کي دزيادت په وجه دحقنې ترحده داوبو په رسېدو سره روژه ماتيږي اوصرف قضا لازمېږي .او په غر غره کي که اوبه نس ته تر حلق ور تېري شوې نو روژه فاسديږي او که تېري نشوې بيا هيڅ خبره نه ده .(۴) په سر او نورو ځايونو دپلستر لګول روادی او که زخم په سر يا لږمانه کي ډېر ژور تر دننه پوري رسېدلی ؤ نو په هغه کي دلمدې دوا په اچولو سره روژه فاسديږي او په نورو زخمونو دوا اچول روژه فاسدونکې نه ده ، او داچي ددوا تفصيل مخکي تېر شو. له پورتنيو صورتو نو څخه چي په کومو کي روژه نه فاسديږي نو په هغو کي قضا اوکفاره هم نشته.او په کومو چي روژه ماتيږي نو په هغو کي قضاء شته او کفاره نشته که په قصد سره وو ـ که په مسئله پوه وو او که نه ؤ او که په هېره سره ؤ نوبيا ورباندي روژه نه ماتېږي ،ځکه چي کله دهېرېدلو په وجه په خوراك او څښاك هم نه ماتيږي نو په

دغو صورتو نو کي دهېرېدلو په وجه خو په طريقه اولی سره نه ماتېږي.

(امداد الفتاوی ج ۱ مخ ۱۷۱)

که يو چا دېر څله په خوله کي اوبه اچولې يا يې په پوزه کي اچولې نو که هغه اوبه معدي ته ورسېدلې روژه ورباندي ماته او قضا واجب ده

(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ مخ ۹۲۲)

## دروژې په حالت کي په غوږوکي تيل اچول

يو چا په روژه کي پخپلو غوږو کي تېل واچول او يايي نسوار وسونل ،يايي په جولاب کولو کي يو داسي چل وکړ چي دخپلو له لاري يې ونه کړل بلکه د(دبُرې)له لاري يې نس ته دوا داخله کړه ،نو په ټولو کي روژه ماته ده اوصرف قضاء لازمه ده.

(بهشتی زيور حصه۳ مخ ۱۳ ،جوهر نيره ج۱ مخ ۱۴۵)

## په غوږو کي دتيلو اچولو سره دروژې ماتېدلو وجه

پوښتنه : څرنګه چي دروژه لرونکي په غوږو کي داوبو دتلو په وجه روژه نه ماتېږي نو هغه تېل ولي په غوږو کي نشي اچولای؟

ځواب : په هدايه کي دفرق وجه دابيان شوې ده چي په غوږو کي داوبو لوېدل او يا داوبو اچول دبدن داصلاح لپاره نه دي ،خو تيل دبدن دسمون لپاره کارول کېدای شي،همدارنګه يې له اوبو څخه دځان ساتلو سختېدنه هم يو فرق کېدای شي.

(فتاوی دار العلوم ج ٦ مخ ٤١٨)

## دروژې په حالت کي په لرگي یا بل څه سره دغوږ گرول

یوچا لرګی یا بل شی را واخستلو او دغوږ دننه برخي ته یې داخل کړ، نو روژه یې وربانديي ماته شوه ځکه چي دغوږونو داخلي (دننه) برخه دشریعت له نظره دلړمانه په حکم کي داخله ده.

(کتاب الفقه على المذاهب الاربعة ج۱ مخ ۹۲۲)

یادونه: دادداخلي برخي حکم دی لیکن ډیر وخت بهرنۍ برخه ګرول کېږي، چي په اړوند یې په (مظاهر حق جدید) کي داسي مسئله راغلې ده

دیوچا په لرګي یا بل څه باندي دغوږخیري ښکاره شول اوبیا یي بیا هم داسي وکړل او څو واره یې دغه کار تکرار کړ نو هم پرې روژه نه ماتېږي. (مظاهر حق جدید ج۲ مخ ۱۷)

که دخولې، غوږونو، پوزي مقعد، فرج، نس او سر دژور زخم له لاري کوم شی معدې یا دماغ ته ورسیږي نو روژه وربانديي فاسدېږي، خلاصه داده چي په غوږ کي اچول شوي تېل یا دوا براه راست دماغ ته یا بالواسطه معدې ته په رسېدلو سره روژه ماتوي.

(فتاوی رحیمیه ج۲ مخ ۱۷)

## دروژې په سهار کي په دې خیال جماع کول چي دا وخت لا شپه ده

پوښتنه: یو څوك په روژه کي په دې نیت ویده شو چي پېشلمي ته به راپورته کېږي نو کله چي راویښ شو نو یې داخیال شو چي شپه پاته ده اوله خپلي مېرمني سره یې جماع وکړه کله چي بهر ته راووتو نو ویې لیدل چي سهار شوی ؤ هغو دواړو په دې خیال چي هسی مو هم

روژه ماته ده او به وخښلې نو پر دغه صورت کي کفاره هم لازمه ده که صرف قضاء ؟ او که يې او به ونه څښلې بيا دواړه لازم دي او که صرف قضاء؟

ځواب: که ديوچا دشپې په خيال په ورځ کي جماع وکړه او روستو له جماع کولو ورته معلومه شوه چی هغه وخت سهار ؤ نو دغه روژه فاسده شوېده ،ليکن تړوله ورځ بايد خوراك اوڅښاك ونکړي او کفاره وربانديې لازمه نه ده اوکه يې په ورځ کي او به هم پسي وڅښلې نو درمضان المبارك دعزت او درناوي پرېښودونکي شول خوبيا هم کفاره لازمه شوې نه ده، خو قضا داوبو څښلو او نه څښلو دواړو صورتونو کي لازمه ده . (امداد الفتاوی ج۱ مخ ۱۷۱)

## په روژه کي له مړې ښځي سره جماع کول

يو چا له مړې ښځي سره يا له نابالغه انجلی سره (چي عموما له هغې سره دجماع کولو شوق نه وي) يا له کوم چار پای سره جماع وکړه يا يې يو څوك په غيږ کي ونيو او يا يې ښکُلْ کړ او يا يې دلاس په ذريعه انزال وکړ او په دغو ټولو صورتونو کي مني ووتل نو روژه فاسده شوه کفاره نه ده لازمه شوې صرف قضا لازمه ده .

(بهشتی زيور حصه ۱۱ مخ ۱۰٤ بحواله شرح الوقايه ج۱ مخ ۲٦۲)

## په روژه کي دميني کولو په وجه دانزال کېدل

پوښتنه: يو چا درمضان په مياشت کي دروژې په حالت کي خپله ميرمنه په غيږ کي ونيوله څه وخت يې همداسي نيولې وه چي انزال

وشو نو په دغه صورت کي کفاره هم لازمیږي او که صرف قضا لازمه ده؟

ځواب : په دغه صورت کي صرف قضاء لازمه ده کفاره نه ده لازمه شوې.

## په خپله مېرمن باندي دکښیناستلو په وجه دانزال کېدل

پوښتنه : یوڅوك درمضان المبارك په ورځ کي په خپله مېرمن باندي صرف کښېناستلو او دکمزوري په وجه یې انزال وشو نو په هغه باندي صرف قضاء لازمه شوه او که کفاره هم شته؟

ځواب :قضاء ورباندي لازمه ده ،او کفاره نشته .

(فتاوی دارالعلوم ج٦ مخ ٤٢٤ بحواله رد المختار ج٢ مخ ١٤٢)

## دمباشرت فاحشي حکم

دمباشرت فاحشې (یعني دشرم دځایو نو له یوبل سره پیوسته کول ببله دخوله)په صورت کي که انزال وشي نو روژه ورباندي فاسدېږي او صرف قضاء لازمېږي ،همدارنګه دچا دښکلولو په صورت کي له انزال کېدلو څخه هم روژه ماته اوقضا لازمېږي.

(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج١ مخ ٩٢٢)

## ایا په لاس سره دانزال کول روژه فاسدونکی عمل دی؟

پوښتنه : که یو چا دروژې په حالت کي دلاس په وسیله دمنو ایستلو کار وکړ ایا روژه یې ورباندي له مېنځه ځي او که نه؟

ځواب : دلاس په وسیله دمنو ایستل یو ډیر بد عمل دی او ددغه کار پر کونکي باندی لعنت ویل شوی دی ،ددغه کار په کولو سره روژه ماتیږي او صرف قضا لازمیږي .

(فتاوی دار العلوم ج۷مخ ٤۱۷ بحواله رد المحتار ج۱ مخ ۱٤۲)

## په استنجاء کي مبالغه (زیات کوښښ)کول

که یو چا خپله ګوته په اوبو یا تیلو لمده کړه او خپل مقعد ته یې داخله کړه ،او یا داستنجا پر وخت اوبه دوجود دننه برخي ته ورسیدې نو روژه ورباندي هغه وخت ماتیږي چي په مقعد (دغټو بولو ځای) کي اچونکی شی دحُقنې ترځایه ورسیږي (یعني کوم ځای ته چي دپیچکاري او بل داسي څه په ذریعه دوا رسوله کیږي) او دا تر هغه وخته پوري نشي کیدای ترڅو چي له ارادې او کوښښ سره مله نه وي او که داسي وشول نو روژه ماته ده او صرف قضا لازمه ده او دا په هغه صورت کي چي په مقعد کي دکپړې یا کاغذ کومه ټوټه یا لرګی دحقنې په څېر کیږدې ،او دهغه سر لږ هم په بهر کي نه وي نو بیا ورباندي روژه ماتیږي او که یوڅه برخه یې دباندي وه ټول دننه نه ؤ نو بیا روژه نه ماتیږي همدارنګه که کومي میرمني خپله ګوته په او بو یا تیلو لمده کړه او یا یې دحقنې لرګی او یا دغسي بل څه په خپل فرج کي پوره داخل کړلو نو بیا ورباندي روژه ماته ده،او په دې ټولو صورتونو کي صرف قضاء شته او کفاره نشته .

(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعة ج۱ مخ ۹۱۸)

## په روژه کې دچلم څکول

پوښتنه : دروژې په حالت کې دچلم په څکولو سره قضا لازمېږي او که کفاره هم لازمېږي؟

ځواب :دچلم، سګريټ ،بيړۍ او نورو ټولو په څکولو سره کله صرف قضا لازمېږي او کله کفاره هم لازمېږي ،دمثال په ډول يو چا په دې خيال له دغو شيانو يو وڅکولو چې ګټه ور نه واخلي نوبيا کفاره هم لازمه ده اوقضا هم ، او که اراده دګټې اخستلو ورته نه وو نوبيا صرف قضاء لازمه ده. (فتاوی دار العلوم ج۲مخ۴۱۹ بحواله رد المحتار ج۲مخ۱۲۲)

## دتندې په وجه دبې پيشلمې روژې ماتول

پوښتنه :يو څوك له تراويح لمانځه وروستو دروژې په نيت ويده شو خو دپېشلمې پر وخت راويښ نشو سهار يې دتندې په وجه ژبه او حلق وچ وه او دا ورته معلومه شوه چې نن ورځ بې پېشلمې روژه پوره کېدای نشي او يوه روژه يې ماته کړه نو په اړوند يې دشريعت حکم څه دی؟

ځواب :ددر مختار دعباراتو څخه څرګندېږي چې که دروژه لرونکي او دهغه کور والا ؤ غالب ګمان داؤ چې هغه به روژه تر پايه ونشي رسولای او يا دمرض يا هلاکيدلو وېره وه نو په هغه صورت کې په هغه باندې ددغې روژې صرف قضاء لازمېږي او کفاره ورباندې نشته او داټول قيدونه هغه وخت لګول کېږي چې هغه دروژې نيت کړی وي

او که یې ددغې ورځې دروژې نیت نه وي کړی نو بیا هم صرف قضا واجبه ده،کفاره خوهغه وخت واجبېږي چي بې له څه وېري په قصد سره دروژې شوی نیت مات کړي .

(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٢٧ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٥٩)

## دلوږي او تندي په وجه روژه ماتول

په یو چا باندي چي دومره زیاته لوږه راشي چي که هغه څه شی ونه خوري نو یامړ کېږي او یا یې عقل ګډوډ کېږي ،نو هغه ته هم دروژې نه نیول روا دي. که له نیت کولو څخه وروستو داسي یو حالت مېنځته راشي نو بیا هم دادهغه تړواك لاندي ده چي روژه ماتوي او کنه.او که یې ماته کړي نو وړباندي صرف قضاء لازمېږي کفاره وړباندي نشته.همدغه حکم دسختی تندي هم دی چي دروژې پر ېښودل هم ورته روادي او دنیول شوې روژې ماتول هم ورته روا دي ـ خو په دې شرط چي دتندي سختي به په هغه اندازه وي کومه چي لوږي ته یاکله شوې ده . (علم الفقه ج٣ مخ٤١)

## مزدور ته دکار دسختي په وجه دروژې ماتول

پوښتنه : زید په فوج کي مذدور دی په داسي حال کي چي هغه روژه وه دفوج مشر ورته په ګرمي کي دکار کولو امر وکړ چي دهغه دروغتیا دخرابي وېره وه ،هلته دوا نه پیداکېدله،ددوا کولو لپاره به هغه بل کوم لیري ځای ته تلو نو ځکه یې روژه ماته کړه،هغه دمسئلې دنه پوهاوي له امله روژه ماته کړه نو داوخت دشریعت حکم څه دی؟

ځواب :که دتندي يا بل څه دسختي په وجه دمرض يا هلاکت وېره وه نو بيا وربانديي کفاره نشته، صرف قضاء وربانديي لازمه ده.

(فتاوى دار العلوم ج٦ مخ ٤٢٢ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٥٨)

## دسوزېدلو په وجه دروژې ماتول

پوښتنه: درمضان المبارك په مياشت کي په کلي کي سخت اور ولګېدو ځينو سړو او ښځو روژې ماتي کړې،نو دهغو لپاره حکم څه دی؟

ځواب :که هغوی داور سېزلو دسختي لوږي تندي يا دځان دوېري په وجه روژې ماتي کړې،نو په هغوی باندي صرف قضاء واجبه ده،کفاره وربانديي نشته.

(فتاوى دار العلوم ج٦ مخ ٤٤٥)

## يو چا په دې فکر چي لمر لوېدلی دی روژه ماته کړه خو وروستو يې لمر وليد چي لا نه ؤ لوېدلی

پوښتنه: دروژی مبارکه مياشت وه او داسمان په لمنه کي سخته خړ پړ تيا وه ديوچا داخيال شو چي لمر لوېدلی او ماښام دی نوځکه يې روژه ماته کړه، دروژې ماتولو وروستو يې وليدل چي لمر لانه دی لوېدلي نو روژه يې څنګه شوه؟

ځواب : په دغه نفر باندي دروژې قضاء لازمه ده او کفاره وربانديي نشته،او دغه ماتېدنه کومه ګناه هم نه ده شوې خودروژې قضاء ضرور بايد راوړي.

(فتاوى دار العلوم ج ٦ مخ ٤٣٦ بحواله هدايه ج١ مخ ٢٠٧)

## دصبح صادق پر وخت دشیدو ښښل

پوښتنه :که یو چا دصبح صادق دراختلو سره سمي شیدې وښښلې نو په هغه کفاره لازمه ده او که قضاء؟

ځواب : که درمضان المبارك روژه وه او دغه نفر دصبح صادق له راختلو خبر ؤ او بیایې دغه کار وکړ نو کفاره او قضاء دواړه لازم دي او که هغه ته دصبح صادق راختل معلوم نه ؤ او په دې خیال یې دغه کار وکړ چې داوخت لا شپه پاته ده نو بیا کفاره نشته خو قضاء لازمه ده . (فتاوی دارالعلوم ج٦مخ٤٣٩ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٤٧ ،١٤٩)

## دنیت کولو وروستو دنفلي روژې واجب کېدل

یو چا چي په خپله اراده او قصد نفلي روژه پیل کړه نو بیا دهغې روژې پوره کول ضروري دی .دفاسدیدلو په صورت کي دهغې قضاء ضروري ده هغه که په قصد سره فاسده شوې وي او که بې له قصده (علم الفقه ج٣ مخ ٤١)

## په هېره سره دخوراک دوه ډولونه

دیوچا دافکر نه وو چي زما روژه ده نو ځکه یې خوراك او ښباك یا جماع وکړه وروستو ورته یاد شو چي زما خو روژه ده نوبیا یې داوویل چي روژه خومي هله هم ماته شوه نو وروستو یې په قصده سره خوراك او ښباك وکړ،نو په دغه صورت کي یې روژه فاسده شوه قضا لازمه ده خوکفاره نشته. او که هغه ته دامسئله معلومه وه او بیا یې په هېره دخوراك کولو وروستو په قصد روژه ماته او جماع یې

وکړه نو قضا او کفاره ورباندي دواړه لازم دي او صرف دخوراك په صورت کي يو قضاء لازمه ده.

(بهشتی زیور حصه ۱۱ مخ ۱۰٤ بحواله شرح تنویر مخ۱۵۰)

## دقي او احتلام وروستو قصدا خوراک کول

يو چا بې له خپلي ارادې قی وکړ يا احتلام شو ، يا ښځي يا بل شي ته په کتلو سره يې انزال وشو او په مسئله دنه پوهاوي په وجه هغه داسي وبلله چي زما روژه ماته شوه له هغه وروستو يې په قصد خوراك وکړ نو روژه يې فاسده او قضاء لازمه شوه.او که داورته معلومه وه چي روژه مي نه ده ماته شوي خو برسېره پر دغه يې قصدا خوراك وکړ نو هم ورباندي صرف قضاء ده .او که يې جماع وکړه نو بيا ورباندي کفاره اوقضا دواړه واجب دي .

(بهشتی زیور حصه۱۱ مخ ۱۰٤ بحواله شامي ج۱مخ۱٤۰)

## دقضاء څو مسئلې

۱. که يومسافر وروستو له نيمايي دورځي څخه مقيم شو.

۲. دکومي مېرمني چي حيض يا نفاس وروستو له نيمايي دورځي پاى ته ورسيدو.

۳. وروسته له نيمايي دورځي ديو لېوني يا بېهوښه حالت سم شو.

۴. يو ناروغ وروسته له نيمايي دورځي جوړ شو.

۵. يو چا په حالت داکراه روژه فاسده کړې وه او وروسته له نيمايي دورځي دهغه مجبوري ختمه شوه.

۶. يو نابالغ وروسته له نيمايي دورځي بالغ شو.
۷. يو كافر وروسته له نيمايي دورځي اسلام راوړ
نو دغو ټولو خلكو ته په پاته ورځ كي دروژه لرونكو په څير دخوراك او څښاك او نورو روژه ماتونكو شيانو څخه ځان ليري ساتل مستحب دي او بغير له (۶)او(۷) نورو ټولوته ددغي روژې قضاء راوړل واجب دي. (علم الفقه حصه ۳ مخ۴۱)

## دروژې ماتيدولو وروستو حكم

درمضان المبارك په مياشت كي كه ديو چا روژه ماته شوه نو دروژې ماتېدلو وروسته هم ورته دڅښي خوړل او څښل صحيح نه دي ،ټوله ورځ دروژه لرونكو په څير پاته كېدل ورباندي واجب دي.
(بهشتى زيور حصه ۳ مخ بحواله هدايه ج۲ مخ۳۰)

## اووم باب

## په كومو شيانو چي كفاره او قضاء دواړه لازمېږي

دمشكوة شريف په يو حديث كي دحضورﷺ ارشاد دى «چاچي بغير له څه مجبوري او مرض درمضان المبارك يوه روژه پرېښودله نو كه بيا ټول ژوند پر له پسې روژې ونيسي نو هم ددغي يوې روژې بدله به را نه وړله شي» دهغه مبارك ددغه فرمان مطلب دانه دى چي ددغي روژې قضاء نشي كېداى ،بلكه مقصد دادى چي كوم انعام ،عزت او ثواب چي دهغې روژې په نيولو انسان ته وركول كېږي هغه په نورو روژو كي هيڅكله نشي ترلاسه كېداى په خپل وخت دكار كول ډېر لويه خبره ده.

دقضاء مسئلې «هغه چې دروژې دفاسدېدلو په بیاء دیوي روژی په بدله کي صرف یوه روژه نیوله کېدل» په شپږم باب کي تېري شوې دلته موږ دورژې دفاسدېدلو دهغو ډولونو مسئلې راوړو چې کفاره او قضاء دواړه لازمیږي.
یوچا روژه نیولې وه بیا یې بغیر له څه عذر او مجبوري په خوښه ماته کړه، نو هغه سخته غلطي وکړه او د الله ﷻ دحقوقو خلاف څه بېې تر سره کړل نوهغه باید له پاکه خدایه ﷻ څخه ښښنه وغواړي، او دبښني غوښتولو صورت دادی چې دیوې روژې په بدله کي یوه روژه ونیسي او یو غلام ازاد کړي، او که غلام «مریې» ازادول ممکن نه ؤ بیا دي په پرله پسې ډول دوې میاشتي روژې ونیسي،او که یې داهم په قدرت کي نه وه ،نوبیا اخېرنی خبره داده چې شپېتو مسکینانو ته دیوې یوې روژې قیمت ورکړې. او داخبره هم باید یاد ولری چې کفاره صرف هغه وخت لازمېږي چې درمضان المبارك په میاشت کي پخپله خوښه باندي روژه ماته کړله شي .که درمضان المبارك نه بغیر بل هر ډول روژه وه .که درمضان المبارك دقضاروژه وه هم ،نو په ماتولو سره یې یوائې قضاء لازمیږي کفاره نه لازمېږي.
نتېجه داشوه چې کله چې دڅه شبهې په اساس روژه فاسده کړله شي نو بیا کفاره واجب نه ده بلکه صرف قضاء لازمه ده. ځکه چې کفاره یو ډول سزا ده او دسزا مستحق هغه څوك کیدای شي چې ښه پوهیږي او ښه ورته معلومه وي خو سربېره په هغه خلاف ورزي وکړي.

## صرف په دوو شیانو کفاره او قضاء دواړه لازمېږي

د حنفي مذهب دعلماؤ په نزد دوه داسي شیان دي چي قضاء او کفاره دواړه ورڅخه واجبیږي ، لومړی داچي بغیر له څه شرعي عذره غذا، اویا دغذا په څېر کوم بل شي یعني وخوړل شي یا وڅښل شي ، اوهغه هم په داسي ډول چي دهغه طبعېت یې غواړي اودنس غوښتنه پوره کړی ، دوهم داچي هغه دنفس غوښتنه پوره کړي اوبیا په دغو دوو صورتو کي دقضااوکفارې دواړو دواجب کېدلو لپاره دوه شرطونه دي ، لومړی شرط دادی چي هغه روژه چي ماته شوې ده هغه به درمضان المبارك روژه وي ، بغیر له دې بله روژه لکه قضا، نذر، کفاره ، نفلي اوداسي بله روژه به نه وي ، په دغو روژو کي کفاره نه واجبېږي ، په بعض صورتو کي قضا لازمیږي ، دوهم شرط یې دادی چي روژه به قصدا ماته کړل شوې وي ، که په هېره غلطي اویاڅه عذر پیدا کېدلو سره وي لکه دمرض پېښېدل ، سفر پېښېدل ، نوبیا دروژې صرف قضا په روژتي لازمه ده. (کتاب الفقه ۱ج ۹۱۳-۹۰۶)

دکفارې لپاره دروژې ټول شرطونه پرځای کول ضروري دي

یوڅوك چي دروژې ټول شرطونه یې پوره کړي وي ، درمضان المبارك په فرضي روژه کي چي دهغې نیت یې ترصبح صادق له مخه کړی وي ، په قصد سره دخولې له لارې نس ته داسي یوڅه تېر کړي کوم چي انسانان هغه دخوراك اویا دوالپاره کاروي ،یعني دهغه له استعمالولو څخه مقصد یوډول ګټه یاخوند وي ، اودهغه شي له کارولو څخه دسالم (روغ) طبعیت انسان نفرت نه کوي که څه هم هغه

دړدن دداني په څېر وي او که هغه له چا سره جماع وکړي او يا بل څوك له ده سره جماع وکړي ( چي دماشومانو سره بدفعلي هم پکښي داخله ده ) دجماع کولو په وخت دمخصوص اندام دټاکلي برخي داخليدل کافي دي ، دمنيو وتل ورته شرط نه دی ،نوپه دغو ټولو صورتونو کي قضا اوکفاره دواړه واجب کېږي ،مگر په دې شرط چي جماع له داسي يوې ښځي سره وکړي چي په هغې کي دجماع قابليت وي ، يعني دومره دکم عمر انجلۍ هم نه وي چي دجماع کولو نه وي .

(درمختار ۱ج ۱۵۱ مخ)

يوچا درمضان المبارك په مياشت کي دروژې نيت نه ؤ کړی نوڅکه يې خوراك اوڅښاك کولو نو په هغه باندي کفاره واجب نه ده ، کفاره هغه وخت لازمېږي چي يوڅلي نيت وکړي اوبيا روژه ماته کړي .

(بهشتي زيور ۳حصه ۱۲ مخ بحواله هدايه ۱ج ۲۰۴ مخ)

## له جماع کولو څخه دکفارې واجبېدل

په جماع کولو باندي روژه ماتېږي دهغې روژې چي جماع پکښي واقع شوې ده قضا اوکفاره دواړه واجب دي که مني ووځي اوکه ونه وځي .

کله چي دسړي دخاص اندام سر دننه شو نو روژه ماته شوه ، که سړي دمېرمني په شاتنۍ برخه کي دخپلې حشفې سر داخل کړ نوهم په سړی اوښځي دواړو باندي کفاره اوقضا دواړه واجب دي ، او روژه ماته ده .

(بهشتي زيور۲ حصه ۱۰ مخ)

هر چاچي له دوو لارو څخه په يوې لاره باندي په خپله خوښه جماع وکړه نوپه هغه باندي قضاء اوکفاره دواړه لازميږي اوپه يوه لاره کي هم دمنو وتل شرط نه دي.

## په روژه کي دماشومانو سره بدفعلي (لواطت)

پوښتنه: که يوچا دروژې په حالت کي لواطت (له نارينه ګانو سره بدفعلي) وکړه اودخاص اندام سريې داخل شو خوانزال ونشو نوکفاره واجبه ده اوکه نه؟

ځواب: په لواطت کي که حشفه داخله شوه نوکه څه هم انزال نه وي شوي قضا اوکفاره دواړه لازم دي. (فتاوی درالعلوم ۶ج ۲۳۸)

## ديوې غلطي مسئلي سمون

پوښتنه: سړی خپله تناسلي اله دمېرمني په فرج کي داخل کړه، اوبيا يې واپس راواستي نوکه هغه وچ ؤ نوبيا ورباندي روژه نه ده ماته شوې يومولوي صاحب دغه مسئله کړېده، ايا دغه صحيح ده اوکنه؟

ځواب: دسړی دخاص اندام سرچي کله دښځي په فرج کي داخل شو نو سمدستي په ښځي اوسړی دواړو باندي قضاء اوکفاره واجبه شوه.

(احسن الفتاوی پاکستاني، ۴ج ۴۴۷ مخ)

## په جماع کي عقل شرط نه دی

په جماع کي دښځي اوسړي دواړو لپاره عقل شرط نه دی، تر دې چي يوله هغو ليونی وي اوبل عاقل وي نودجماع په کيدلو سره په عاقل کفاره لازمه شوه، دمثال په ډول ښځه لېونۍ وه سړی عاقل ؤ،

یا سړی لیونی ؤ ښځه عاقله وه نوپه دواړو صورتو کي په عاقل کفاره لازمه ده.

که له یوې ښځي سره جماع وکړل شوه ، نو په هغې باندي دکفارې اوښتلو لپاره دسړي بلوغ شرط نه دی ، حتی که له یوې میرمني سره لیوني یا نابالغ ماشوم جماع وکړه نوبیا هم په ښځي باندي قضا اوکفاره دواړه لازم دي. (علم الفقه ۳ج ۲۸ مخ)

که ښځه دجماع په کولو باندي راضي وه نوقضا اوکفاره دواړه واجب دي ، اوکه په زور جماع کولو ته مجبوره شوې وه نوبیا ورباندي صرف قضاء لازمه ده ، اوکه اول زبردستي وه اوبیا وروستو ښځه په جماع کولو راضي شوه نوبیاهم ورباندي قضا اوکفاره دواړه واجب دي.

(فتاوی هندیه ۲ج ۲۰ مخ کتاب الصوم)

## په ورځ کي دجماع کول څنګه ، اوپه شپه کي ترکومه دجماع اجازت شته

پوښتنه : (۱) درمضان المبارک په میاشت کي دروژې په حالت کي یوچاله مېرمني سره کوروالي (جماع) وکړه نوڅومره کفاره ده او کفاره یې څه ده ؟ (۲) په شپه کي سړی له کومه ترکومه وخته جماع کولای شي ؟ (۳) اوڅه وخت باید غسل وکړي ؟

ځواب : په ورځ کي درمضان المبارک دمېرمني سره جماع کول کبېره ګناه ده ، اوپه دغه صورت کي قضاء اوکفاره دواړه واجب دي ، اوکفاره یې داده چي اول خو یوغلام ازاد کړي اوکه دایې په وس ونه

شوه بیا دي پرله پسې شپیته (۶۰) روژې ونیسي اوکه دایې په قدرت کي ونشوه نوبیا دي (۶۰) شپږتو مسکینانو ته سهار اوماښام خوراك ورکړي . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۴۲ بحواله ردالمحتار۲ج ۱۴۷)

(۲) کوروالی (جماع) کول دلمر له لوېدلو څخه بیا دصبح صادق تر راختلو لږ مخته پوري صحیح دی (سورة بقرة ۲ پاره ۷ رکوع)

(۳) دجنابت غسل له سهار کېدو وروستوهم کولای شي.
(ردالمحتار۱ج ۱۳۸ مخ)

## درمضان المبارک په دېرشم دسپوږمۍ په لیدلو سمدستي روژه ماتول

پوښتنه : که یوچا دروژې په میاشت کي دماپښین وروستو سپوږمۍ ولیدله ، نو روژه ماتول روادي اوکنه ؟ اوکه په دغه صورت کي چا روژه ماته کړه نوصرف قضالازمه ده اوکه کفاره هم ؟ اوکه چا تر زوال له مخه سپوږمۍ ولیدله نو حکم یې څه دی ؟

ځواب : هغه سپوږمۍ خو دراتلونکی ورځي ده نوځکه دروژې ماتول صحیح نه دی ، دماتولوپه صورت کي قضا اوکفاره دواړه واجب دي ، ترزوال وروستو خو ددریو واړو امامانو په متفقه رایه سره کفاره اوقضادواړه واجب دي ، اوترزوال له مخه دسپوږمۍ لیدلو په صورت کي امام ابوحنیفه رحمه الله اوامام محمد رحمه الله کفاره واجب بللې ده اوفتوی هم په همدي قول ده . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۳۴ مخ)

## پټ مسلمان شوي ته روژه ورماتول

پوښتنه : یوکافرپه وجود کي ایمان راوړ اودرمضان المبارك روژه یې ونیوله ، نوله دې خاطره چي دغه راز چا ته څرګند نشي نوځکه یې

روژه ماته کړه ، اوبیا وروستو یې خپل اسلامیت په ډاګه کړ اوښکاره مسلمان شو نودهغې روژې کفاره وریاندې لازمه ده اوکنه ؟
ځواب :کله چې یوڅوك مسلمان شو اوپه پاك خدای تعالی اومحمدﷺ یې ایمان راوړ اوددین ټول احکام یې ومنل نوهغه دالله تعالی په نزد مسلمان شو ، که څه هم خلکو ته لا دهغه اسلام راوړل ظاهرشوي نه وي ، که هغه درمضان المبارك روژه نیولې وه اوبیا یې ماته کړه نوپه هغه باندې کفاره لازمه ده .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۲۵ مخ بحواله عالمګیري مصري ۱ج ۱۵۲ مخ)

## دبل چا لاړې تیرول

که یوچا دبل لاړې تېرې کړې نو روژه یې وریاندې فاسده شوه قضاؤ وریاندې شته اوکفاره وریاندې نشته ، اوکه یوچا خپلې لاړې په لاس یابل څه کې واچولې اوبیا یې بېرته تیرې کړې نو هم صرف قضاء لازمه ده خوکه چا دهغه چا لاړې چې ورسره یې مینه لرله تېرې کړې نوبیا کفاره اوقضا دواړه واجب دي .

(عالمګیري اردو ۲ج ۱۷۱ مخ)

## دتبرک لپاره دبزرګ دلاړیو څکلو حکم

که یوچا دروژې په حالت کې دیوبزرګ لاړې دبرکت حاصلولو په خاطر وچیښلې نو روژه یې وریاندې فاسده اوکفاره اوقضاء دواړه واجب دي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۳۳ مخ)

## داومې غوښي اويا اومو وريجو خوړل

پوښتنه : يوچا دروژې په حالت کي په خپله خوښه اومه غوښه يا اومې وريجي وخوړلې نوآيا قضالازمه ده اوکه قضاء اوکفاره دواړه ؟
ځواب : په دغه صورت کي قضا اوکفاره دواړه لازميږي .
(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۴۲ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۴۸ مخ)

## دروژې په حالت کي په قصد سره دچلم څکول

څوك چي دچلم څکولو عادت لري هغه چي دروژې په حالت کي چلم وڅکوي قضاء اوکفاره وربانده دواړه لازميږي همدارنګه يوچا که څه هم دچلم څکولو عادت يې نه لرلو مګر دڅه فائدي په موخه يې په روژه کي په قصد سره چلم وڅکاؤ نوپه هغه باندي هم قضاء اوکفاره دواړه واجب شول. (بهشتی زیور ۱۱ج ۱۰۵ مخ بحواله شرح التنویر ۱ج ۱۴۹ مخ)

## د کفارې مسئلې

### کفاره څه ته ويل کيږي

دکفارې روژې څو ډوله دي چي ، موږ دلته صرف درمضان المبارك دکفارې بيان کوو درمضان المبارك ديوې دورې په کفاره کي بايد يوغلام ازاد کړل شي ، که ددې کار قدرت ورسره نه ؤ اويا هلته غلام نه پيداکېدو نوبيا دشپيتو روژو نيول واجب دی او که يې شپيته روژې هم نشوای نيولای نوبيا وربانديٍ شپيتو (۶۰) مسکينانو ته خوراك ورکول واجب دي اودشپيتو (۶۰) روژو پيوسته والي هم واجب دی په مينځ کي به يې پريکړون نه راځي ، اوکه په څه وجه سره جلاوالي دروژو راغی نوبيا به دوهم ځل روژې له سره پيل کوي ،

ددغه جلاوالي په وجه مخته نيولي شوې روژې بې اعتباره شوې ، خوکه مېرمني ته دکفارې په لړکي حيض ورغي اودپريکړون سبب شو نو دغه حيضي پريکړون معاف دی ، اوکله چي حيض پای ته ورسېدلو نوسمدستي دي هغه پاتي روژې پسي پوره کړي ، ښه خبره داده چي اول دقضاروژه ونيوله شي اوبيا پرله پسي دکفارې روژې ونيولي شي اوکه چا اول دکفارې روژې ونېولي اوبيايې دقضا روژه ،نوبيا هم صحيح دی ،که له جماع کولو بغير په کومه بله وجه باندي کفاره واجبه شوې وه اويا يې تراوسه پخوانۍ کفاره نه وه نيولې چي بله واجبه شوه نوبيا ددواړو په ځای يوه کفاره راوړل واجب دي که څه هم يوه کفاره په يوه رمضان المبارك اوبله يې په بل کي واجبه شوې وي خوکه دجماع کولو په و جه هرځومره روژې فاسدي شوې وې ، دهغو ټولو به ځانله ، ځانله کفارې اداء کوي ، که څه هم لاتراوسه يې لاهغه بله کفاره نه وي اداء کړي ، که يوڅوك دکفارې راوړلو په دريو واړو ډولونو ، دغلام په ازادولو ، په روژو نيولو ، اوشپېتو مسکينانو ته په ډوډۍ ورکولو باندي قادر ؤ نوهغه ته بايد دهغه څه دکولو حکم وشي چي په هغه باندي ډېر سخت وي ، ځکه چي له کفارې څخه مقصود زجر، توبيخ اوخبرتيا ده ، معلومه خبره ده چي په اسانه صورت غوره کولو کي هغه ته خبرتيا نه حاصلېږي .

دبحرالرايق مولانا صاحب ليکلي دي چي که په بادشاه باندي کفاره واجب شوله نوهغه ته دغلام ازادولو اويا شپېتو (۶۰) مسکينانو ته دډوډۍ ورکولو حکم بايد ورنکړل شي ځکه چي هغه ته دغه کارونه

هیڅ ګران اومشکل نه دي اوهغه دراتلونکي لپاره ورځخه هیڅ درس نه اخلي نوځکه باید ورته دپرله پسي (۶۰) روژو دنیولو حکم وشي ، ترڅوهغه ددغي کفاري دسختي په وجه په بله روژه کي بیا روژه فاسده نکړي . (علم الفقه ۳ج ۴۰ مخ)

یوبل شرط داهم دي چي شپېتو مسکینانو ته به دوه وخته دومره خوراك ورکوي چي دوی ښه پوره په ډك نس ماړه شي دادهغه خوښه ده چي په یوه شوا روز (سهار اوماښام) کي دغه کار کوي اوکه دوي ورځي سهار سهار ، یا دوي ورځي ماښام ماښام خوشرط دادي چي کومو محتاجانو ته چي اول وخت ډوډۍ ورکړله شوېده ، دوهم وخت به هم هغو خلګو ته ورکوله کېږي ، یووخت یوې ډلي (۶۰) مسکینانو ته اوبل وخت بلي ډلي (۶۰) مسکینانو ته ډوډۍ ورکول صحیح نه دی ، خوکه یوچا پوره (۶۰) ورځي پرله پسې یوه مسکین ته ډوډۍ ورکړه ، اویایې (۶۰) ورځي هره ورځ جلا جلا مسکین ته ډوډۍ ورکړه نوهم پکښي څه بدي نشته ، اوپه دغه ډول باندي کفاره اداء کیږي ، اوکه یوچا د(۶۰) اویاڅه کمومسکینانو دیوې ورځي دخوراك په اندازه صدقه په یوه ورځ یوه مکسین ته ورکړه نوپه دې سره دهغوټولو برخه نه اداء کیږي بلکه دیوه مسکین برخه اداء شوه .

همدارنګه کومو محتاجانو ته چي خوراك ورکول کېږي دهغو لوږه هم ضروري ده ، که موړو خلګو ته ډوډۍ ورکړله شي نو کفاره نه اداء کیږي بلکه دوهم ځل وږيو ته دډوډۍ ورکول ضروري دي .

(مظاهر حق جدید ۲ جلد ، ۵ قسط ، ۱۲ مخ)

دغه قیدونه او شرطونه ددې لپاره ښودل شوي دي چي خلګ د رمضان
دروژې احترام وکړي او بې له څه شرعي عذره هغه ماته نکړي.

(مولانا رفعت قاسمي)

## دکفارې ټول قیمت یومحتاج ته ورکول

دروژې او قسم په کفاره کي یو محتاج ته یوه ورځ ډوډۍ ورکول دیوې
ورځي فدیه ګرزي ، دقسم په کفاره کي لسو مسکینانو ته ، او یا
یو مسکین ته لس ورځي ډوډۍ ورکول ضروري دی ، نو که یو فقیر ته
دیوې شپې او ورځې دخوراك څخه زیات نورڅه ورکړل شي نو هغه
دیوې ورځي کیږي ، دبلي ورځي لپاره هغه فدیه کار نه کوي ، مګر
شیخ فاني ته ( هغه څوك چي دروژې نیولو قدرت یې نه وي )
یو محتاج ته دټولي روژې فدیه ورکول پکار دي ، او که یوه محتاج ته
دڅوڅو روژو فدیه ورکړي نو هم جائز دی ، او په دې ډول دهغه فدیه
اداء کیږي مګر دکفارې حکم مختلف دی ، په کفاره کي شپېتو (۶۰)
مسکینانو ته خوراك یا غنم اویانقدي فدیه ، او یا یومسکین ته
شپیته ورځي خوراك ورکول ضروري دی ، یومسکین ته تر یوې
ورځي زیات څه ورکول دهغې یوې ورځي
فدیه ګرځي او بس ، غرض داده چي په کفاره کي دورځو
اودمحتاجانو شمېرل شته خو په فدیه کي دهغه ضرورت نشته.

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۵۱ مخ بحواله ردالمحتار ۳ج ۱۶۳ مخ)

که یو چا دشپیتو ورځو غنمو ته حساب وکړ او یوه فقیر ته یې په یوه
ورځ ټول ورکړ نو صحیح نه دی ، همدارنګه که یوچا په یوه ورځ کي

شپيته (۶۰) واري غنم يوه فقير ته ورکړو نو هم داتول صرف ديوې ورځې شو (۵۹) مسکينانو ته به يې بيا ورکوي ، همدارنګه دقيمت ورکول حکم هم شته (يعني په يوه ورځ کي يو مسکين ته ديوې روژې بدله ورکول) خوله دې څخه زيات څه ورکول صحيح نه دی ، همدارنګه که يوچا فقير ته دصدقة الفطر تراندازې کم ورکړل نو هم کفاره يې نه صحيح کيږي. (بهشتی زيور ۳حصه ۱۶ مخ بحواله ردالمحتار ۲۵۰ مخ)

## په قصدي روژه ماتولو سره دکفاري اوقضا دواړو لزوم

پوښتنه : د فقهي په کتابو کي چي داسي ليکلی دي چي درمضان المبارك دروژې په بې له عذره ماتولو سره قضا اوکفاره دواړه واجبيږي ، نوآيا دکفارې اوقضا روژې به جلا جلا نيسي اوکه په ګډ ډول قضاء اوکفاره په (۶۰) شپيته روژو سره اداء کيږي ؟

ځواب : درمضان المبارك دروژې په قصدي ماتولو سره قضاء اوکفاره دواړه واجبيږي (يعني يوه روژه دقضا لازمه ده او (۶۰) روژې دکفارې لازمي دي) .(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۲۹ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۴۷ مخ)

## دکفارې (۶۰) شپيته روژې

پوښتنه : آيا دکفارې روژې دوه مياشتي ده چي (۵۸) (۶۰) او(۵۹) ورځي هم کيدای شي اوکه (۶۰) ورځي پوره کول ضروري دی ؟

ځواب :که يو چا دسپوږميځي مياشتي له لومړۍ څخه دروژو نيول پيل کړل ، نو دسپوږمۍ په حساب دي دوه مياشتي پوره کړي ، دواړه داعتبار وړ دي ، اوکه يې له لومړۍ ورځي پيل نکړې نوبيا دي شپيته روژې پوره کړي. (احسن الفتاوی ، پاکستاني ۴ج ۴۵۰ مخ)

که یوچا دسپوږمۍ له لیدلو سره سمي درمضان المبارك دکفارې روژې پیل کړې ، نو بیا ورته پوره دوي میاشتي روژه نیول کافي دي ، که پوره شپېته (۶۰) ورځي وي اوکه تردې کمي . (کفایت المفتي ۴ج ۲۲۸ مخ)

## په کفاره کي پرله پسي والی ضروري دی

دکفارې په راوړلو کي داضروري ده چي دوي میاشتي پیوسته روژې ونیسي ، که یوه ورځ هم بې له څه شرعي عذره ، لکه دسفر اویاسخت مرض اوداسي نورو پېښیدلو څخه روژه پاته شي نوهغه روژې چي مخته یې نیولې دي هغه ټولي نفلي شوې اوکفاره به بېرته له سره پیل کوي ، ځکه چي پیوستوب ضروري دی اودلته خو هغه له مینځه لاړ.

اوکه یوچا دسخت تکلیف اویابل څه په وجه روژه نشوای نیولای نوهغه دي (۶۰) مسکینانو ته دومره خوراك سهار اوماښام ورکړي چي ورباندي وړې خلګ مړېږي باید وویل شي چي په فرضي کفاره کي (۶۰) شپیته داسي وړي مسکینان باید ماړه کړل شی چي دکفاری اد اکونکي دکور خلګ نه وي ، دکور له خلګو څخه مراد هغه څوك دي چي دهغو نفقه په ده باندي واجبه وي لکه پلار ، مور مېرمن واړه بچي اوداسي نور .(کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ۱ج ۹۴۱ مخ)

## په دوه ډوله ورکولو کي دتسلسل ضرورت نشته

که یو چا په پرله پسي ډول (۶۰) شپېته ورځي مسکینانو ته خوراك ورنه کړ ، بلکه په مینځ کي څو ورځي دغسي تېري شوي نو کوم نقصان ورته نه رسوي. (بهشتی زیور ۳ج بحواله مراقی الفلاح ۲۰۶ مخ)

په خوراك وركولو كي پرله پسې والي ته ضرورت نشته ، په ځانله ځانله ورځو كي هم دخوراك په وركولو كفاره اداء كيږي .
(احسن الفتاوی ۴ج ۴۴۱ مخ)

## دحيض په وجه دكفارې دروژې پريكړون

د رمضان المبارك دمياشتي دروژې ماتولو كفاره ددوو مياشتو پرله پسې روژې نيول دي ، د روژو ترمينځ وخت وركول صحيح نه ده ، كه چا بغير له عذره په مينځ كي څو روژې پريښو دلي نوبيا به واپس له سره ټولي ، روژې پيلوي ، خوكه يوې مېرمني دحيض ورتلو په وجه څو روژې په مينځ كي پريښوولي ، نو هغه ورته معاف دي ، دهغو په پريښو دلو سره په كفاره كي څه نقصان نه دی راغلی ، ليكن دپاكېدو سمدستي دي پاتي روژې نيول پيل كړی او (۶۰) شپيته روژې دي پوره كړي . (بهشتی زيور ۱۵ مخ بحواله شامي ۲ج ۱۵۰ مخ)

دمياشتني مرض په وجه دكفارې په روژو كي ځنډ ياجلاوالی راتلل كفارې ته ضرر نه رسوي ، خو دمياشتني مرض دپای ته رسېدلو سره سمدستي بايد دپاتي روژو نيول پيل كړی ، كه ددغه مرض دپای ته رسېدلو وروستو يوه ورځ هم روژه پريښودله شوه نوبيابه له سره دكفارې (۶۰) روژې پيل كوي .

دنفاس (دهغې ويني چي دماشوم له پيدا ايښت څخه وروستو راځي) په وجه كه دكفارې دروژو په مينځ كي روژې پريښودلې شوې اوپرله پسې والی ونه ساتل شو ، نودهغې مېرمنې كفاره نه ده صحيح ، ټولې روژې به بېرته له سره پيل كوي . (بهشتی زيور ج ۳ مخ ۱۵ بحواله رد المحتار ج۱ مخ ۱۵۱)

يادونه : ددې وجه داده چې حيض خو په هره مياشت کې واقع کېږي او کفاره خو (۲۰) روژې ده، نوځکه هغه مشکل وي نو ټوله کفاره په پرله پسې ډول نيول ناشونې ده ،خو نفاس دحيض په څېر نه دی، ځکه چې دنفاس وينه (چې په را تلو سره يې لمونځ معاف او دروژې قضاء لازمېږي) دماشوم له پيدائښت سره پېښېږي او په کال کې کم تر کمه يو ځل داسي پېښېږي ،نو په دې وجه دحيض او نفاس ترمېنځ ښکاره فرق دی .(محمد رفعت قاسمي)

## دکفارې په مېنځ کې دناروغې يا رمضان دمياشتې واقع کېدل

که دغم يا ناروغي په وجه د کفارې په مېنځ کې څه روژې پاته شولې ،نوهم به دروغبدلو سره سم هغه له سره پيل کوي همدارنګه که په مېنځ دکفارې کې رمضان المبارك واقع شو نو هم کفاره نه صحيح کېږي. (درمختار ج ۳ مخ ۱۵۰)

## که يو څوک په روژه نيولو قادر نه ؤ

که يو چا دروژې نيولو قدرت نه لرلو نو هغه دې شپېته وږي مسکينان سهار او ماښام ماړه کړي هغو ته بايد دومره خوراك ورکړل شي چې وږي پاته نشي. (بهشتی زیور مخ۱۵ بحواله درمختار ج۱ مخ۲۵۰)

## دکفارې لپاره ضامن نيول

که يو چا بل چاته وويل چې ته زما له جانبه کفاره ادا کړه او (۲۰) شپېتو مسکينانو ته خوراك ورکړه .نو هغه (۲۰) شپېتو مسکينانو ته يا خوراك ورکړ او يايې ورته غنم ورکړل نو دهغه کفاره ادا شوه

خوکه یو چا بغیر له وینا دچا کفاره ادا کړه نو دهغه کفاره نه ده اداء شوې. (بهشتي زیور حصه ۳ مخ۱٦ بحواله شامي ج۲ مخ ۸۳)

## دروژو دکفارو دګډولو تفصیل

پوښتنه : دڅو په شمېر روژو په کفارو کي ګډون کېدای شي او که نه؟ یعني دټولو لپاره یوه کفاره کافي کېږي او که نه؟

ځواب : په دې کي درې خبري دي.

۱. لومړی داچي په مطلق ډول تداخل (ګډون) دی، که دیوي رمضان المبارك دروژو وي او که دجلا جلا رمضان المبارك دروژو کفاره که دجماع (یوځای کېدلو) په وجه لازمه شوې وي او که په کوم بل سبب.

۲. دوهم داچي ددوو رمضان المبارك په کفارو کي ګډون نشته،دهغو دلزوم سبب که جماع وي او که بل څه.

۳. او دریم داچي که ددوو رمضان المبارك کفارې دجماع وې نو تداخل نشته او په نورو ټولو کي تداخل (ګډون)شته. او دغه قول ته ترجیح ورکړله شوېده.

٤. (احسن الفتاوی پاکستاني ج٤ مخ ٤٤٤ بحواله رد المحتار ج۳ مخ ۱۲۰)

که بغیر له جماع څخه په کوم بل سبب باندي کفاره لازمه شوې وه او یوه کفاره لانه وه اداء شوي چي بله لازمه شوه،نو ددواړو لپاره یوه کفاره کافي ده ـ که څه هم یوه په یو رمضان کي او بله یې په بل رمضان کي لازمه شوې وي خو که په سبب دجماع (یوځایوالي) سره څو کفارې په یو رمضان المبارك کي لازمي شوې وي ،نو دهغو لپاره

یوه کفاره کافي ده .اوکه په جلاجلا رمضانو کي په سبب دجماع لازمي شوې وي نو دهر رمضان کفاره به جلا جلا اداء کوي.که څه هم دتېر رمضان کفاره يې لانه وي اداء کړې حاصل ورنه دارا وزي چي دجماع څخه بغير په مطلق ډول تداخل (ګډون)کېدای شي.او دجماع ديوي رمضان المبارك دکفارو ګډون کېدلاي شي .خو ددوو رمضانو دکفارو تداخل نشي کېدلای.

يعني په يوه رمضان المبارك كي دواجب شوو كفارو ګډون کېدای شي چي تر دغه وخته يې بله کفاره نه وي اداء کړې ددو رمضانو په کفارو کي ګډون نشي کېدای او په دي کي دجماع او غير جماع ټولي کفارې يو ډول دي مګر موږ په غير دجماع کي صحيح او باوري قول خپل کړی دی. (بهشتی زیور حصه ۱۱ مخ ۱۰٦)

دحنفي مذهب والو په نزد دکفارې دواجبونکي عمل په بيا بيا کولو سره هغومره کفارې ادا کول واجب نه دي .هغه که په يوه ورځ کي څوڅو واره وي او که په څو ورځو کي وي خو که يو چا يو ځلي کفاره واجبونکی کاروکړ او بيا يې دهغه کفاره اداء کړه او بيا يې بيا همدغه کار وکړ نو که دغه دوهم وار هم په دغه ورځ کي و نو يوه کفاره واجب ده او که يې دهغه اعاده په مختلفو ورځو کي وکړه نو له لومړي ځل وروستو چي دهغه ځل کفاره يې ور کړې ده ،بله کفاره به اداء کوي.

په دې کښې دومره زيات تفصيل ضروری دی چې که دکفارې لزوم دمباشرت (جنسي فعاليت) په سبب شوی ؤ نو دوهم ځل به کفاره اداء کوي او که داسي نه ؤ نوبيا دوهم ځل اداء نشته .
(کتاب الفقه على المذاهب الاربعه ج۱۱ مخ ۹٤٤)

## په کفاره کي تا خير (ځنډ) کول

پوښتنه : په يو چا باندي دروژې کفاره وه او هغه دمدرسې زده کونکی او يايي دقران کريم حفظ کاؤ نو که هغه روژه نيسي نو دعلم په حاصلولو کي تاوان رامينځته کېږي او که نه يې نيسي نو سبب دَسختو نيولو ګرزي. نو په دې خاطر هغه ته داروا دی چې دعلم او يا حفظ له پوره کولو وروستو دروژې کفاره اداء کړي؟
ځواب : دکفارې په روژو کي بايد ځنډونه کړل شي که څه هم هغه دعلم او يا حفظ کولو په حالت کي وي او روژه نيول دهغه کار ته تاوان رسوي. (فتاوی رشيديه کامل مخ ۳۷۳)

## په کفاره کي چاته ددوو ميا شتو خوراک مقررول

پوښتنه : دروژې په کفاره کي ددوو مياشتو يعني (٦٠) شپېتو ورځو خوراك مقررول روا دی او که نه؟
ځواب : دروژې په کفاره کي يو طالب العلم (٦٠)شپېته ورځي دواړه وخته کښېنول او ورته خوراك ورکول په داسي ډول چې دهغه تر بس والي پوري وي صحيح دی او په دې سره کفاره اداء کېږي. مګر دهغه کښينول او ورته خوراك ورکول پکار دي ځکه چې هره ورځ ورته

ددوو سېرو په اندازه يا دوړوکي اختر دصدقې په اندازه او يا دهغه قېمت ورکول ضروَري دي . (فتاوی دار العلوم ج٤ مخ٤٤٨)

دغه رعايت (لحاظ)په دې وجه ساتل شوی دی چي کله په عام ډول دچا لپاره خوراك تاکل کېږي نو څلور مړه وي او حال دادی چي دځيني خلګو دخوراك اندازه تردې زياته وي. (محمد رفعت قاسمی)

## وړو ماشومانو ته په خوراک ورکولو سره کفاره نه اداء کېږي

که دمسکينانو په ډله کي څه شمېر بالکل واړه ماشومان ؤ نو داروانه دی ، ددغو ماشومانو په بدل کي بايد نورومسکينانوته بيا ډوډۍ ورکړي (بهشتی زيور ۳ج ۱۶ مخ ، شامي ۱ج ۵۰۳ مخ )

داتو (۸) يا لسو (۱۰) کلو کوچنيانو ته چي وخت دبلوغ ته نژدې نه وي دخوراك په ورکولو سره کفاره نه اداء کېږي ، خوکه دوی دکفارې داندازې خاوندان وګرزول شي دمثال په ډول که هريوه ته پاوکم دوه کيلو غنم اويا دهغو قېمت ورکړل شي نوبيا صحيح دی .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۲۵۲ مخ بحواله ردالمحتار ۳ج ۸۰۲ مخ )

## په کفاره کي هر مسکين ته دوه وخته خوراک ورکول

پوښتنه : که دروژې په کفاره کي په يو وخت (۱۲۰) مسکينانو ته ډوډۍ ورکړله شي ، اودقسم په کفاره کي په يووخت (۲۰) شلو مسکينانو ته ډوډۍ ورکړله شي نو آيا کفارې به اداء شي اوکه نه؟

ځواب :په يو وخت ډوډۍ ورکولو سره کفاره نه اداء کېږي دروژې په کفاره کي له هغو (۱۲۰) مسکينانو څخه (۶۰) اودقسم په کفاره کي له

هغو (۲۰) مسکینانو څخه (۱۰) ته دوهم ځل هم دخوراك ورکول واجب دي که په همدغه ورځ وي اوکه بله ورځ وي.

(احسن الفتاوی ۴ج ۴۴۰ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۲۳۵ مخ)

که یو مسکین ته په یوه ورځ کي تریوې ورځې ترانداز ې زیات څه ورکړل شول نودهغې یوې ورځي لپاره کافي کیږي اوبس نتیجه داده چي په کفاره کي دمسکینانو او ورځو شمېر کول ضروري دی خو په فدیه کي دمسکینانو او ورځو شمېر ضروری نه دی.

(فتاوی دارالعلوم قدیم ۳ج ۷۳ مخ).

## په کفاره کي غنم اویا دهغو قیمت ورکول

که یوڅوك په مسکینانو باندی ډوډۍ ونه خوري بلکه هغو ته اومه غنم ورکړي نو هم صحیح دی، هرمسکین ته دي دومره ورکړي څومره چي دوړوکي اختر په صدقه کي ورکول کیږي، همدارنګه که دغومره غنمو قیمت هر مسکین ته ورکړل شي نوهم صحیح دی.

(بهشتی زیور ۳حصه ۱۶ مخ بحواله درمختار ۱ج ۲۵ مخ)

## یوه مسکین ته خوراک ورکول

که یوچا شپېته (۶۰) ورځي یومسکین ته خوراك ورکړ، اویا یې (۶۰)شپېته ورځي ورته هره هره ورځ غنم یا دهغو قیمت ورکړ نو په دې ډول هم کفاره اداء کیږي. (بهشتی زیور ۳حصه ۱۶ مخ بحواله قدروي ۱۵۷ مخ)

## دکفارې په روپو دمدرسي لپاره ټاټ اخستل یا دمسجد وداني جوړول

پوښتنه: دروژې کفاره شپېتو مسکینانو ته دوه وخته ډوډۍ ورکول دي، نوکه دهغې ډوډۍ په قیمت باندي دمدرسي لپاره دطالبانو

دخدمت په خاطر تاتې واخستل شي ، اويادمسجد په رغونه کي وکارولي شي نو په دې ډول کارونه يې اداکول روا ده اوکنه ؟

ځواب : که يوچا دشپېتو روژو نيولو قدرت نه لرلو نو هغه بايد ديوې روژې په بدل کي يومحتاج ته سهار اوماښام ډوډۍ ورکړي ، که هغسي نشو کيدای نوبيا هرمسکين ته پاوکم دوه کيلو غنم اويا دهغو قيمت ورکول ضروري دی دمدرسې لپاره دتاتې اخستل اويا درباندي دمدرسې يامسجد ودانۍ رغول صحيح نه دی.

(فتاوی دارالعلوم ۴۴۹ مخ بحواله ردالمحتار، ۱۴۹ مخ)

دکفارې روپۍ په مدرسه يامسجد کي ورکول صحيح نه دی اوپه دې سره کفاره نه اداء کېږي ، خو که دطالبانو په خوراك کي ولګولي شي ، په دې شرط چي (۶۰) شپېتو نفرو ته دوه وخته خوراك ورکړل شي ، اويا هر طالب ته دوړوکي اختر دصدقې په اندازه پاوکم دوه سېره غنم ، اويا دهغو قيمت ورکړل شي نوبيا صحيح اوکفاره درباندي اداء کېږي . (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۴۵۴ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۷۹ مخ)

## دکفارې دروژې پرځای دنغدو روپو ورکول

پوښتنه : دزيد په ذمه درمضان المبارك يوه کفاره پاته ده ، هغه دوي مياشتي روژه نشي نيولای ، نو که هغه دکمي درجې دوو مياشتو دخوراك روپۍ په مدرسه کي راټولي کړې کوم طالب العلم ته نو آيا کفاره يې اداء شوې ده اوکه نه ؟ اويا زيد يومحتاج ته درې پاوه اوړه پوره دوه مياشتي ورکړي اودتر کاري اولرګو لپاره ورته نغدی روپۍ ورکړي نو ايا کفاره به اداء شي اوکه نه ؟

ځواب : په روژه کي دتکليف په وجه داسي روانه دي چي څوك روژه پرېږدي اوپه ځای يې مسکينانو ته خوراك ورکړي ، ځکه چي په قران کريم کي ورته د« فمن لم يستطع» قيد لګول شوی دی چي حاصل يې دادی چي په هغه کي دروژې نيولو قدرت نه وي يعني دعلاج نه لرونکي مرض يا دومره زوړ والي په وجه چي نور دروژې نيولو توان ورسره پاته نه وي ، نو هغه وخت بيا مسکينانو ته دخوراك ورکول صحيح دي ، نو کله چي يا بې علاجه مرض يا له ډېربښته دعمر څخه بې قدرتي پېښه شوه نوبيا (۶۰) مسکينانو ته دخوراك ورکول ضروري دي ، نو ددې لپاره دوه صورتونه دي ، يوداچي هر مسکين ته پاوکم دوه کيلو غنم اويا دهغو قېمت ورکړل شي اويا (۶۰) شپېته وږي مسکينان دوه و خته ماړه کړل شي نو يو غريب ته روزانه په درې پاوه اوړو ورکولوسره (چي پوره دوه مياشتي وي) کفاره نه اداء کيږي بلکه هغه وخت به اداء شي چي پاوکم دوه کيلو غنم ، اوړه اويا دهغو قېمت ورکړل شي ، همداشان په اجمالي (يوځايې) ډول يو طالب ته په روپو لېږلو سره هم کفاره نه اداء کيږي بلکه دابه ورسره ليکي چي (۶۰) شپېتو مسکينانو ته په يوه ورځ کي دوه وخته اويا يومسکين ته دوي مياشتي دواړه وخته په خوراك کولو دي دروژې دکفارې په نيت ولګولي شي .

## په کفاره کي دمدرسي دمهتمم وکالت

پوښتنه : که يو چا دمدرسې مشر دکفارې دخوراك ورکولو لپاره وکيل کړ ، نو هغه دکفارې روپۍ دطالبانو په خوراك باندي لګولای شي اوکنه اويا ورباندي مهتمم کپړه اخستلای شي اوکنه ؟

ځواب : هغه کولای شي چي دکفارې په ټولو روپو باندي کېړه واخلي اوطالبانو ته يې ورکړي داسي کول صحيح دي . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۵۴ مخ)

## په توبه باندي دروژې دکفارې معاف کيدل

پوښتنه : داسي يوچاچي په کفاره نه پوهيدو دروژې په حالت کي دخپلي مېرمني سره جماع وکړه ، نو په هغه خو کفاره لازمه شوې ده خو په هيڅ ډول هم کفاره نشوای اداء کولای نو په دغه صورت کي به دهغه توبه قبوله شي اوکنه ؟

ځواب : په دغه صورت کي دقضاء اوکفارې دوارو اداء کول ضروري دي ، توبه هغه وخت قبلیږي چي که پرله پسي د(۶۰) روژو نيولو قدرت ونه لري نوبيا (۶۰) مسکينانو ته ډوډۍ ورکړي (فمن لم يستطع ) (فتاوی دارالعلوم ديوبند ۶ج ۴۵۰ مخ بحواله قرآن کريم سورة مجادله ۱ رکوع )

## دښځو مسئلې

## دحيض تعريف اومسئلې

(۱) مسئله : هغه وينه چي هره مياشت دمېرمنو له مخکني لوري څخه راځي هغه ته حيض ويل کيږي .

(۲) مسئله : دحيض کمه مده دري ورځي او دري شپې ده اوزياته مده يې لس ورځي لس شپې ده ، کومي مېرمني ته چي ترلسو ورځو زياته وينه ورشي نو ترلسو ورځو اوشپو چي هرځوورځي زياته وينه ورغلې ده هغه داستحاض (مرض ) وينه ده اوکه تر درو ورځو اوشپو کمه وي نو هم هغه حيض نه بلکي استحاض (مرض ) دی چي دځه ناروغي يابل څه له وجي پيداکيږي .

(۳) مسئله : که دیوې مېرمنې وینې دلمر لوېدلو وروستو بنده شوه ، نوداهم حیض نه بلکه استحاض دی دغه وینه که لږ هم تر درو ورځو دروشپو کمه شي نوبیا حیض نه بلل کیږي.

(۴) مسئله : دحیض په مده کي دننه سور ، ژړ ، شین ، خاورین ، خړېخون ، او تور رنګونه ټول دحیض دي ،ترهغه وخته پوري چي ښودل شوې کپړه بالکل سمه ، او پاکه ولیدله شي ، اوکله چي داسي وشول نو حیض ختم اوښځه پاکه شوه

(۵) مسئله : تر نهه (۹) کلني له مخه اوتر (۵۵) کلني وروستو ښځي ته حیض نه ورځي ، نو ترنهه کلنۍ له مخه که دانجلي څخه وینه راغله هغه حیض نه بلکي استحاض دی ، په دې معنی چي ترنهه (۹) کلنۍ له مخه خو بالکل حیض نشته نو ځکه خو که تر (۹) کلي له مخه وینه ورغله نو هغه کله هم حیض نشي کېدلای ، او د(۵۵) کلنۍ وروستو چي کوم عام عادت دی هغه داده چي ښځو ته حیض نه ورځي ، خو دبیا وینې ورتلو امکان یې بېخي له مینځه تللی نه دي ، نوځکه که تر(۵۵) کلني وروستو وینه ورغله نو په هغو خاصو ښځو کي چي له مخه یې ذکر شوی دی هغه ته به حیض ویل کېږي ، که دغي مېرمني ته تر (۵۵) کلنۍ له مخه هم ژړ یا خاورین یا شین رنګ ورتلی نو د(۵۵) کلنۍ وروستو هم هغه رنګونه حیض بلل کېږي ، اوکه دعادت په خلاف دارنګه وشول نوبیا حیض نه بلکي استحاض دی.

(۶)مسئله : یوې مېرمني ته همیشه درې یا څلور ورځي وینه ورتله خو په یوه میاشت کي ترپخواني عادت زیاته شوه ، لیکن ترلسو ورځو

کمه وه نودغه ټول حیض دی ، اوکه ترلسو ورځو هم واوښتله نوبیا هغومره ورځي چي دهغې پخواني عادت ؤ حیض ، اوپاته ورځي (هرڅومره چي وي ) استحاض بلل کېږي ، دمثال په ډول دیوې مېرمني پخوانی عادت دري (۳) یا څلور (۴) ورځي دی مگر یوه میاشت ورته (۸) یا (۹) یا (۱۰) ورځي اوشپې وینه ورغله نودغه ټولي ورځي حیض دي ، اوکه ترلسو شپو او ورځو یوه لحظه هم وینه زیاته شي نوبیا هغه دپخواني عادت دري (۳) ورځي حیض اوپاته ورځي استحاض (مرض) دی او ددغو ورځو دلمونځو قضا راوړل واجب دي

(۷) مسئله : یوه داسي ښځه وه چي لاتر دې وخته یې ټاکلي عادت نه ؤ کله ورته (۶) ورځي وینه ورتله اوکله (۸) اوداسي نور همدارنگه تل دبدلون په حال کي ؤ ، ان داچي کله خو لسو ورځو ته هم رسېدو ، نو دغه ټول حیض دی دغه رنگه مېرمني ته که ترلسو ورځو زیاته وینه ورغله نوهغه دي داوگوري چي تېره میاشت ورته څوورځي وینه ورغلي وه ، هرڅومره ورځي چي ورته تېره میاشت وینه ورغلې وه هغومره ورځي به حیض بولي او نوري ټولي ورځي مرض دی

(۸) مسئله : یوې مېرمني ته به همېشه څلور ورځي وینه ورتله اوپه یوه میاشت کي ورته (۵) پنځه ورځي وینه ورغله اوبیا په دابله میاشت کي (۱۵) ورځي وینه ورغله نوله دغو (۱۵) ورځو شخه (۵) ورځي دحیض او (۱۰) ورځي داستحاض دي پخوانی څلور ورځني عادت به معتبر نه بولي ، اوداسي به وایي چي عادت له (۴) څلورو ورځو څخه (۵) پنځو ورځو ته بدل شوی دی .

(۹) مسئله: يوې مېرمني ته ترلسو ورځو زياته وينه ورغله او هغې ته پخوانۍ عادت هيڅ هم ياد نه ؤ چي تېره مياشت حيض څو ورځي ؤ نوددغي مېرمني مسئلې ډېري سختي اوباريکي دي چي وربانديپوهېدل ګران کار دی اوداسي يومشکل ډېر کم واقع کيږي نوځکه مونږ دهغې حکم بيان نه کړ، که کله دچا ضرورت پېښ شو نو له ځايې (کليوال) اويابل عالم نه دي

دخپل مشکل په اړوند پوښتنه وکړي، خو ددارنګه سختو مسائلو لپاره هسي په نوم ملاصاحب ته بايد مراجعه ونشي.

(۱۰) مسئله: که يوې نوې پېغلي انجلۍ ته لمړي ځل وينه ورغله، نو که پوره لس ورځي اوياتر دې کمه وه نوټول حيض دی، اوکه ترلس ورځي زياته شوه نوبيا (۱۰) ورځي اوشپې دحيض دي، او نوري ټولي ورځي استحاض (مرض) دی.

(۱۱) مسئله: يوې انجلۍ په لومړي ځل وينه وليده اوهغه څومياشتي په هيڅ ډول هم بنده نشوه اوهمداسي روانه وه، نودويني دليدلو دورځي په شمول لس ورځي اوشپې حيض اوپاته (۲۰) ورځي استحاض دی.

ترهغه وخته چي يې وينه په پرله پسي ډول روانه وي همدغه لس ورځي به حيض او (۲۰) شل ورځي به استحاض بلل کيږي.

(۱۲) مسئله: ددوو حيضونو ترمينځ دپاکۍ مده کم ترکمه (۱۵) ورځي ده، اودزياتي مدې لپاره ټاکلی حد نشته که په څه وجه

دکومي مېرمني حيض بند شي نو ترڅو مياشتو پوري چي وينه بنده وي ترهغو به دغه مېرمن پاکه بلله کېږي.

(۱۳) مسئله: که يوې مېرمني ته درې (۳) ورځي اوشپې وينه ورغله بيا (۱۵) ورځي پاکه وه، اوبيا ورته بيا (۳) درې ورځي اوشپې وينه ورغله نو لومړنی او وروستنی دواړه (۳) (۳) درې، درې ورځي حيض دی اوپه مېنځ کي (۱۵) ورځي دپاکي زمانه ده.

(۱۴) مسئله: که يوې مېرمني ته يوه يادوې ورځي.وينه ورغله بيا (۱۵) ورځي پاکه وه، له هغې څخه وروسته بيا يوه يا دوې ورځي وينه ورغله نو هغه (۱۵) ورځي دپاکي دي اولومړنی او وروستنی يوه، يوه يا دوي، دوي ورځي هم دحيض نه بلکه داستحاض (مرض) ورځي دي.

(۱۵) مسئله: که مېرمني ته يوه يا څو ورځي وينه ورغله، اوبيا کم تر (۱۵) ورځي پاکه وه، نو دغه پاکي داعتبار وړ نه ده، بلکه داسي به بلله کيږي چي ګويا له اول څخه تر اخېره پوري پيوسته وينه جاري وه، نوڅومره ورځي چي دهغې دحيض پخواني عادت دی هغومره ورځي حيض دی اوپاته ورځي داستحاض (مرض) دي، دمثال په ډول ديوې مېرمني عادت داؤ چي دهري مياشتي په لومړۍ، دوهمه او دريمه ورځ به حيض ورتو بيا په يوه مياشت کي داسي وشول چي دمياشتي په لومړۍ ورځ وينه ورغله بيا (۱۴) ورځي پاکه وه، بيا يوه ورځ بيا ورته وينه ورغله نو هغه به داسي ګڼي چي (۱۶) شپاړس ورځي پرله پسې وينه راغلې ده نوله دغو ورځو څخه اول درې شوا

روزه حیض دی اوپاته (۱۳) ورځي استحاض (مرض) دی همدارنګه که دمیاشتي څلورم ، پنځم ، اوشپږم دهغې دحیض عادت ؤ نودغه درې ورځي به حیض بولي اومختني دري ورځي او وروستنی (۱۰) ورځي داستحاض دي او که ددغي مېرمني دغه دویني ورتلو لومړی وارؤ نو لس (۱۰) ورځي حیض دی او (۶) شپږ ورځي استحاض (مرض) دي.

(۱۶) مسئله : که یوه مېرمن حمل (په نس کي اولاد) ولري نو هغې ته ورتلونکي وینه هم حیض نه ،بلکه استحاض دی هرڅومره ورځي چي وي.

(۱۷) مسئله : دبچي دپیداکېدلو پروخت چي ترهغه له مخه کومه وینه مېرمني ته ورځي هغه هم ترهغه وخته پوري استحاض (مرض) دي ترڅو چي تر نیمایي زیاته برخه دماشوم بهر ته راوزي.

(بهشتی زیور ۲ حصه ۶۱ مخ)

## دحیض لرونکي میرمني حکم

د حیض په حالت کي روژه نیول اولمونځ کول صحیح نه دي خو ددوئ ترمینځ فرق دادی چي لمونځ بالکل معاف دی اوله پاکېدو وروستو دهغه قضاء واجب نه ده ، مګر روژه نه ده معاف شوې ، اوله پاکېدلو وروستو به یې قضاء راوړي.

(بهشتی زیور ۲ حصه ۵۹ مخ بحواله بحر ۱۹۴ مخ)

## نفاس لرونکې مېرمن

دبچي دپيدائښت څخه وروستو چي کومه وينه پيداکيږي هغه ته نفاس وايي ، په نفاس کي هم لمونځ دتل لپاره معاف دی ، خو روژه نه معاف کيږي بلکه دپاکي په حالت کي به يې قضاء راوړي .

## داستحاضې (مرض لرونکې) حکم

داستحاض احکام کټ مټ دپوزي دجاري ويني په څېر دي ، استحاض لرونکې مېرمن به لمونځ هم کوي ، روژه به هم نيسي ، اوقضاء کوي به يي نه ، داستحاضې حکمونه بالکل دمعذور په شان دي چي دبهشتيي زيور اوله حصه (۵۴) مخ کي يې ښه په تفصيل سره بيان شوی دی . (بهشتی زيور ۲ حصه ۶۱ مخ بحواله شرح الوقايه ۱ج ۱۱۳ مخ)

## دروژې پيل کولو وروستو په ورځ کي دحيض پيل کيدل

که په فرض لمانځه کي حيض پيل شو نو هغه لمونځ معاف شو ، اوپه پاکي کي يي قضاء نشته ، خو که په نفلي اوياسنت لمانځه کي پيل شو نو هغه به دپاکي په حالت کي بېرته راګرزوي .

که له نيمايي دورځي وروستو حيض پيل شو نو روژه ماته شوه ، کله چي دغه مېرمن پاکه شي نو قضاء به يې راوړي اوکه په نفلي روژه کي حيض پيښ شو نو دهغه به هم قضاء راوړي

(بهشتيي زيور ۲حصه ۵۹ مخ بحواله جوهرة النيرة ۱ج ۳۲ مخ)

## دکفارې دروژو په مينځ کي دحيض پېښيدل

په کفاره کي دمياشتني مرض ( حيض ) په وجه جلاوالی راتلل ضرر نه لري ، ددغه مرض دختمېدلو سمدستي بايد دپاتې روژو نيول

پیل کړي او په پرله پسې ډول (۶۰) شپېته روژې پوره کړي ، که دحیض ختمېدلو وروستو یوه ورځ هم ونه نیوله شي نو بیا به ټولي

(۶۰) شپېته روژې له سره نیسي .(احسن الفتاوی پاکستاني ۴ج ۴۳۴ مخ)

## په ورځ کي دپاکیدلو حکم

که یوه مېرمن درمضان المبارك په ورځ کي پاکه شوه ، نو ترماښامه ورته دخه شي خوړل اوڅښل روانه دي ، او تر روژه ماتي پوري دروژه لرونکو په څېر پاته کېدل ورته واجب دي هو،مګر په دغه ورځ په روژه کي نه ګڼله کیږي دهغې به دپاکي په حالت کي قضاء راوړي .

(بهشتي ۲حصه ۶۱ مخ بحواله شرح وقایه ۳۱۶ مخ)

## په شپه کي دپاکیدلو حکم

که یوه مېرمن په شپه کي پاکه شوه ، اودحیض یې پوره لس ورځي اوشپې تېري شوې وې نو که دومره لحظه هم چي الله اکبر هم پکښې نشي ویل کیدای شپه پاته وه نو هم دراتلونکې ورځي روژه وربا ندي واجب ده او که حیض ترلس ورځي کم ورغلی ؤ نو بیا که دشپې دومره برخه پاته وه چي په تلواره سره پکښې غسل کېدای اوله هغه وروستو یوځل الله اکبر هم نشوای ویل کېدای نو هم ورباندي دراتلونکې ورځي روژه واجب ده ، که دغومره اندازه شپه پاته وه اوهغې پکښې غسل ونه کړ ، نو هم روژه به نه ماتوي ، دروژې نیت دي له شپې څخه وکړي غسل به له سهار کېدو وروستو وکړي ، او که تردې هم کم وخت ؤ یعني غسل پکښې نشوای کیدای نو بیا روژه نیول ورته روانه دي ، مګر په ورځ کي به هیڅ خوراك اوڅښاك نه

کوي ، بلکه دروژه دارانو په ځېر به پاته کېږي اوپه پاکي کي به بیا دهغې قضاء راوړي .(بهشتی زیور ۲حصه ۶۱ مخ).

که یوه مېرمن په شپه کي پاکه شوه ، نو هغه دي روژه نه پرېږدي ، اودشپې دغسل نه کولو په وجه دي هم روژه نه ماتوي ، که په شپه کي غسل ونشو سهار دي وکړي ، خو که یوه مېرمن له سهار کېدلو (صبح صادق ) وروستو پاکه شوه ، نوبیا ورته دروژې نیت کول صحیح نه دی ، خو په ورځ کي ورته خوراك څښاك کول هم صحیح نه دي ، ټوله ورځ به دروژه لرونکو په ځېر پاته کېږي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۷۰ مخ جوهرة النیرة ۱ج ۱۴۸ مخ).

یادونه :په هغه وخت کي غسل ضروري نه دی ، بلکه مراد دادې چي دومره وخت دشپې باید پاته وي چي په هغه کي غسل کېدای شي ، نوبیا که سمدستي نه ،بلکه سهار غسل وکړي نو هم صحیح دی ، په روژه کي ورته څه ضرر نه پېښېږي ، اودرمضان په ورځ کي چي هروخت مېرمني ته حیض ورغي (که څه هم دورځي کمه برخه پاته وي ) نو روژه ماته شوه ، هغه که فرضي روژه وي اوکه نفلي وروستو به یې بیا قضاء راوړي (ترتیب کونکي ) ( رفعت قاسمي ).

## مېرمن چي پاکه شي نوقضاء راوړل پرې واجب دی

مېرمنو ته په روژه کي له حیض اونفاس څخه پاکېدل شرط دی ، ځکه چي نه په حیض اونفاس کي روژه واجب دی ، اونه روژه نیول ورته صحیح ده ، هریو دحیض اونفاس چي پوره یوه لحظه تر صبح صادق له مخه پای ته ورسیږي نو سمدستي په هغه شپه کي دروژې نیت

کول واجب دی ، له حیض او نفاس لرونکو ښځه چي هر کله دروژې نه نیولو حالت ختم شو ، نو سمدستي به درمضان المبارك قضاء شوې روژې نیسي.

## په ښځه باندي دخوب لیدو په وجه غسل لازمېدل

یوه مېرمن درمضان المبارك په ورځ کي ویده شوه ، او داسي خوب یې ولید چي ورباندي غسل لازم شو ، نو په دې سره دهغې روژه نه ماتېږي (بهشتی زیور ۳حصه ۶۱ مخ ، جوهرة النیرة ۱ج ۱۴۲ مخ)

## دجنابت دنه کولو په صورت کي دروژې حکم

یو چاته په شپه کي دغسل کولو ضرورت پیښ شو خو هغه غسل ونه کړ ، نو که په ورځ کي غسل وکړی نو هم روژې ته یې تاوان نه رسېږي همدارنګه که په دغه ټوله ورځ کي غسل ونه کړي هم روژه یې سمه ده ، خو دغسل نه کولو ګناه بېله ده . (بهشتی زیور ۳ حصه ۷۰ مخ بحواله نورالایضاح ۱۴۷ مخ)

## دروژې په حالت کي له سړی سره ناسته ولاړه

د خاوند یابل چا سره ښځه کښیناستل ، په دوی باندي لاس لګول له هغو سره محبت او مینه کول صحیح دی ، لیکن په وخت دځواني کي دومره جوش وي چي له داسي کولو څخه دجماع کولو وېره وي ، نو ځوانانو ته دروژې په حال کي دغه کارونه نه دي کول پکار.

(بهشتی زیور ۳ حصه ۷۰ مخ)

## دښځي شونډان ښکلول

د روژې په حالت کي دمېرمني ښکلول او دهغې په غېږه کي نیول مکروه دي ، ځکه دانزال ، او دخپل نفس له واکه وتلو او جماع کېدلو

ویره ده ، اوکه دغه وېره نه وه نوبیا مکروه هم نه دی ، همدارنګه دمېرمنې یابل چا شوندې ښکلول اومباشرت فاحشه (یعنې دتناسلي غړیو له یواوبل سره لګول بې له دخوله ) په هر حالت کې مکروه دي ، که دجماع وېره وي اوکنه ، اوکه انزال کېږي اوکنه (بهشتي زیور ۱۱ حصه ۱۰۴ مخ)

## جماع (کوروالی ) کول

که له نارینه ښځه جماع وشوه نو هم روژه له مینځه ځي ، دهغې روژې به قضاهم راوړي اوکفاره هم ، کله چې دنارینه په شاتنی لاره کې دخاص اندام سرپټ شو ، نوسمدستي روژه ماته ، اوقضااوکفاره دواړه واجب شول دمنو وتل اونه وتلو شرط پکښې نشته ، همدارنګه که یوسړی دښځې سره په شاتنی لاره جماع وکړه اودخاص اندام سر پکښې پټ شو ، نو هم په ښځه اوسړي دواړو باندې کفاره اوقضاء دواړه واجب شول

(بهشتي ۳حصه ۷۰ مخ)

## په زور باندې جماع کول

یوه مېرمنه ښه بېغمه ویده وه ، اویا بیهوښه وه اوپه دغه حالت کې ورسره چا جماع وکړه نودهغې روژه ماته شوه صرف قضاء لازمه ده کفاره ورباندې نشته ، اوپه سړي باندې کفاره هم واجبه ده یو چا له روژې لرونکې مېرمنې سره په زور یا دخوب اویا لېونتوب په حالت کې جماع وکړه نوپه سړي باندې قضاء اوکفاره دواړه واجب دي ، اوپه ښځه باندې صرف قضاء لازمه ده .

(بهشتي زیور ۱۱ حصه ۱۰۵ مخ)

## له نابالغ یا لیوني سره جماع کول

که یوې ښځې له نابالغ او یا لېوني سره جماع وکړه نو روژه یې ماته شوه او قضاء او کفاره دواړه واجب شول.

(بهشتی زیور حصه ۱۱ مخ ۱۰۵ بحواله عالمګیري ج۱ مخ ۲۰۳)

## د ښځو ترمېنځ نږدېکت کېدل

که دوو مېرمنو په خپل مینځ کي له یوې اوبلي سره نزدیکت او یا یوې په بلي مشغولتیا وکړه نو د انزال کېدلو په صورت کي روژه ماته ده خو کفاره لازمه نه ده، او دنه انزال په صورت کي روژه هم نه ده ماته شوې. (فتاوی هندیه ج۲ مخ۲۰)

## په رحم کي دربړکړۍ داخلول

پوښتنه: یوې مېرمني درحم له خارښت څخه شکایت لرلو ددې دعلاج لپاره یې په فرج کي دربړ یوه کړۍ (چي درحم په داخلي برخه کي ښودله کېږي) کېښودله نو ایا روژه یې ماتېږي او که نه؟
ځواب: دروژې په حالت کي دهغې ښودل روژه فاسدوي خو که بغیر دروژې په حالت کي ښودل شوې وي او په حال دروژې کي هم هلته وي، نو له دې څخه روژې ته هیڅ تاوان نه رسېږي.

(امداد الفتاوی ج۲ مخ ۱٤٤)

## دروژې په حالت کي په فرج کي دوا اچول

پوښتنه: یوې مېرمني له روژه ماتي څخه وروستو دناروغۍ په وجه ددوا کڅوړه بنده کړه او دشپې یې په خپل فرج کي کېښودله او له بل

روژه ماتي ورپوستو يې را ويستله او ياپې دروژې په حالت کي په ورځ کي کېښودله نو په دې اړوند دشريعت حکم څه دی؟

ځواب :دروژې تر پيل له مخه ښودل شوې دوا روژه نه فاسدوي خوکه دروژې په حالت کي دوا کېښودله شي نوبيا ورباندي روژه ماتېږي. (فتاوی رحيميه ج۲ مخ۳۸)

## دروژې په حالت کي په فرج کي دټيوب استعمالول

پوښتنه: يوې ميرمني ته دروژې په حالت کي په خپل فرج کي ټيوب لګول يعني دوا استعمالول روا دي او که نه؟

ځواب: په دې سره روژه نه ماتېږي .خوکه دوا داخلي فرج ته ورسيده نو بيا روژه ماته ده. دپورته اوږده سوري په اخېر کي له ګرد سوري څخه داخلي فرج پيل کېږي. که دښځي دفرج په داخلي برخه کي څه کېښودل شي نو روژه ورباندي ماتېږي .ځکه چي په ښځو کي دننه دغه يو پيدايشي سوری دی چي تر لږمانه پوري رسېږي .که دنارينه په تناسلی غړي کي څه شی واچول شي نو زموږ په نزد ورباندي روژه نه ماتېږي. ځکه چي دمعدې او دغه نل تر منځ نيغ په نېغه سوری او لاره نشته ،بلکه دمثانې لاره ده چي هلته يو يو څاڅکی بولي کښته لوري ته راځي او هلته بيا راټولېږي په عالمګېري ج۱ مخ ۱۲۴ کي راغلي دي چي:دنارينه په تناسلي غړي کي ددوا په اچولو سره روژه دامام ابوحنيفه رحمه الله او امام محمد رحمه الله په نزد نه ماتېږي ،خو دمېرمني په فرج کي په دوا اچولو سره بې اختلافه روژه ماتېږي .او داقول صحيح دی. (جديد فقهی مسائل مخ ۱۹۷)

## دحمل شوولو حکم

د ډیر محترم مفتي صاحب ---------- زید مجدکم- السلام علیکم ورحمة الله

محترما--- دحمل اخستلو په لمړیو ورځو کي دښځي په فرج کي ډاکټره یا دایي کله په داسي حال کي چي نرمه جالۍ ډوله دستکله یې په لاس کړې وي او کله بغیر له دستکلې وي،خپلي ګوتي ننباسي ایا په دغه صورت کي دروژې حکم څه ډول دی؟

**والسلام ----سعود الرحمن----دیوبند.**

بسم الله الرحمن الرحیم- هو الموفق المعین--- که ددغی ډاکټري یا دایې په دستکله باندي داوبو یا بل څه اثر نه وي،نوبیا دلاس په ور ننه ایستلو سره روژه نه فاسدېږي .او که درباندي دلوند والي اثرؤ نو بیا روژه فاسدېږی.

*کفیل الرحمن نشاط نائب مفتی دار العلوم دیوبند---محمد ظفیر الدین مفتي دارالعلوم دیوبند*

## په فرج کي دګوتي داخلول

دروژې په حالت کي په مخکنی لاره کي ددوا ایښودل یا تېلو او داسي نورو اچول صحیح نه دی. که یوچا دروژې په حال کي پکي دوا واچوله نو په دې سره دهغه روژه ماتېږي.قضاء درباندي واجب ده او کفاره نشته.

او که دڅه ضرورت په وجه ډاکتري یا هغې پخپله په خپل مخکنی لاره کي ګوته ننه ایستله،بیایې توله یا لږ برخه دګوتي راویستله اوبېرته یې دننه کړه ،نو بیا وباندي روژه ماته ده او قضاء لازمه ده خو کفاره نسته خو که یې ګوته له راایستولو وروستو بېرته دننه

نکړه،نوبیا روژه هم نه ده ماته شوې.خو که تر دخول له مخه ګوته په اوبو یا بل څه باندي لونده وه (که څه هم کمه لونده وي) نو په اول وار دخول یې روژه له مېنځه لاړه.

(بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۷۰ بحواله در مختار ج۱ مخ ۱۴۹)

## په روژه باندي، دګوتي داخلولو اثر

پوښتنه :که یوسړي دښځي په فرج کي ګوته ور دننه کړه، نو ایا روژه یې ورباندي ماتېږي؟

ځواب : په دغه صورت کي دسړي روژه نه ماتېږي.او دښځي روژه داسي ده چي که یې لونده ګوته داخله کړه، او یا یې وچه ګوته ور داخله کړه خوله پوره را ایستلو او یا لږ را ایستلو وروستو یې بېرته ور دننه کړه، نو په دواړو صورتو کي روژه ماتېږي. او صرف قضاء واجبه ده (احسن الفتاوی ج۴ مخ ۴۴۷)

## دګوتي ددخول جرم بللو په وجه جماع کول

پوښتنه: یوې مېرمني ددوا استعمالولو لپاره خپل فرج ته ګوته ور دننه کړه،او بیا ورباندي شهوت غالب شو. نو دهغې داخیال شو چي روژه ماته شوه او بیا یې قصدا جماع وکړه نو روژه یې څنګه شوه؟

ځواب : دروژې قضاء اوکفاره ورباندي دواړه واجب دي .

(احسن الفتاوی پاکستاني ج۴ مخ۴۴۴)

## دحاملې (بچی لرونکې)حکم

حمل لرونکې مېرمني ته په دې شرط دروژې پرېښودل روا دي چي په نیولو کي یې مور یا ماشوم ته ضرر رسېدلو غالب ګمان وي ،بیا که

دهغې دګمان سره سم کار کېږي او که نه کېږي، که یوه مېرمن وروستو دروژې له نیت کولو څخه پخپله حاملګي باندي پوه شوه نو هم ورته دروژې فاسدول روا دي او صرف قضاء ورته لازمه ده. که حاملې ته داسي یو حال مخي ته راغی چي دروژې په نیولو کي پخپله هغې ته یا دهغي ماشوم ته دمړیني وېره وه، نو بیا ورته دروژې ماتول صحیح دی. (عالمګېري پاکستاني ج۲ مخ ۳۳ بهشتي زیور حصه ۳ مخ ۱۷)

## دولادي دردونو په وجه روژه ماتول

پوښتنه: که یوه مېرمن دحمل په وجه په تکلیف وه او په پیل کي یې روژه ونیوله خو وروستو یې ډېرته ددغه تکلیف په وجه ماته کړه او ماشوم دلمر لوېدو څخه وروسته پیداشو نوپه دی اړوند دشریعت حکم څه دی؟

ځواب: که په روژه نه ماتولو کي مور یاماشوم ته دڅه نقصان رسېدلو غالب ګمان ؤ، نوبیا په دغسي حالت کي روژه ماتول جائز دي ،او صرف قضاء لازمه ده کفاره نشته او بغیر له دغه خطره څخه دروژې ماتول ګناه ده او کفاره واجب ده ،خو که په دغه ورځ تر لمر لوېدلو له مخه بچی پیدا شو. نو بیا کفاره له مېنځه ځي. (احسن الفتاوی پاکستاني ج٤ مخ ٤٤٢)

## «دنوي بچي راوړونکې» اوکمزوې مېرمني حکم

پوښتنه: هغه مېرمن چي نوی یې ماشوم پیداشوی وي یاهغه چي ډېر کمزورې وي که روژه نشي نیولای او فدیه ورکړي نو داسي کول روا دي او که نه؟

ځواب : په دغه صورت کي دفديې ورکول نه کافي کېږي که فديه يې ورکړې هم وي .خوکه وروستو تر هغه روغه شوه او قدرت يې ورسيدو نو دهغې روژې قضا بيا هم ورباندي لازمه ده .
(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٧٨)

## دشيدو خوړونکي خيال ساتل

کومه مېرمن چي خپل يا پر دي مفت يا په بدله اخستل شوي ماشوم ته شيدې ورکوي نو په دې شرط چي بچي ته دضرر رسېدل به غالب گمان وي ،په څه ډول چي مورِ وينو چي دروژې په حالت کي شيدې وچېږي او ماشوم دلوږي په وجه مړکېږي او په.شيدو يو ډول تو دوخه هم پيداکيږي چي دماشوم لپاره زيان لري يعنی چی هغه تودخه ورکه شي نو دروژې نه نيول ورته صحيح دی. خو که دغې مېرمني ورته مفتی شېدې ورکولې او بله مېرمن هم دهغه دشېدو ورکولو لپاره پيداکېدله ،او ماشوم هم ورباندي خوښ ؤ نو بيا ورته دروژې پرېښودل روا نه دی . (علم الفقه ج٣مخ ٣٦)

## ايا دشيدو په ورکولو سره دمېرمني روژه ماتېږي او كه نه؟

پوښتنه: په شيدو ورکولو سره دمېرمني روژه يا اودس ماتېږي او کنه؟

ځواب : روژه اواودس ورباندي نه فاسديږي روژه خو ځکه نه فاسديږي چي شيدې بهر ته راوزي او روژه دروژه ماتونکو شيانو دپريښودلو نوم دی .

(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٠٨ بحواله رد المختار ج٢ مخ ١١٠)

## حائضې ته په رمضان کي خوراک څښاک کول

پوښتنه :که یوې مېرمني دحیض په وجه روژه نه نیوله نو هغې ته په ورځ کي خوراك کول صحیح دی او که نه؟

ځواب : که یې دحیض په وجه روژه نه نیوله او یایې دروژې پیل کولو وروستو دحیض دورتلو په وجه روژه ماته کړه نو خوراك څښاك کول ورته روادي خو د روژه لرونکو تر مخ دي خوراك نه کوي. او کله چي حیض ختم شي نو دورځي په پاته برخه کي ورته دروژه لرونکو په څیر پاته کېدل واجب دي . (احسن الفتاوی ج٤ مخ٤٣٨)

## یو ماشوم ته دشیدو ورکولو مده لاختمه نه وه چي مېرمن بیا امیدواره شوه

پوښتنه: یوې امېد واري مېرمني حمل ته دتاوان رسېدلو په وجه روژه نه نیوله ،دماشوم له پیداکېدلو وروستو دشیدو ورکولو په وجه معذوره شوه.او بیا ددغه ماشوم دشېدو خوړلو مده لا ختمه نه وه چي بل یې په ګېډه شو- نو په دغه تسلسل دعذروکي به حامله روژه څرنګه نیسي؟

ځواب :که دحمل په حالت کي دهغې داقدرت نه ؤ چي روژه ونیسي او یا دماشوم په لوري ورته کومه وېره متوجه وي نوبیا دي هغه وخت دروژې قضاء راوړي چي دماشوم پیداکېدلو تسلسل یې پای ته ورسېږي . (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٦٢ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٥٩)

## دروژې په حال کې دماشوم لپاره دخوراک ژوول

که یوه مېرمن په خپله خوله کې دوړوکي بچي لپاره څه میده کوي او بیا یې هغه ته ورکوي، نو دامکروه دی خو که ډېر ضرورت پېښ شو او دمجبوري په وجه بله لاره نه وه نو بیا مکروه نه دي.
(بهشتی زیور ج ۳ مخ ۱۳ بحواله شرح وقایه ج۱ مخ۳۱۳)

او دماشوم لپاره دخوراك ژوولو په عذرونو کې یو داهم دي چې دماشوم له مور سره بله حیض یا نفاس لرونکې او یا داسي ښځه نه وي چې روژه نه نیسي چې دهغه لپاره دژوولو په مرسته خوراک برابر کړي . اوبل داچې هغه ته نرم پوخ کړی شوی خوراك او شیدې هم نه پیداکېږي. ( فتاوی عالمگیری اردو پاکستانی ج۲ مخ۱۱)

## دژوولو پر وخت دګولې تېرېدل

که یو چا دبل چالپاره مړی ژووله او هغه ګوله ورنه تېره شوه نوکفاره وربانديي نشته، صرف قضا لازمه ده. (فتاوی عالمگیری اردو ج۲ مخ۱۱)

همدارنګه که یو چا په ژبه باندي دیوڅه څکه وکړه اوهغه خوند یې واپس توکړ نو روژه یې نه ده ماته شوې ،مګر بې له ضرورته داسي کول مکروه دي، خوکه دکومي مېرمني خاوند بدطبیعته ؤ او هغه ډارېدله چې که تر کاري یا ډوډۍ تروه ،ترخه یا بې خونده وي، نو له هغې سره به جنجال جوړ کړي نو هغې ته دمالګي څکل بلا کراهته روا دي (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۱۳)

## دخوراک پخولو په وجه دسختې تندي پېښېدل

که یو چاته دخوراك پخولو په وجه سخته تنده ورپېښه شوه ،آن چې دتندي دلاسه داوېره وه چې هغه دي مړشي نو روژه ماتول صحیح دی

خو که يو چا قصدا داسي وکړل چي له امله يې دغه تنده را مېنځته شوه نو ګنهګار دی. (بهشتي زيور حصه ۳ مخ ۱۷ بحواله شامي ج ۲ مخ ۱۵۹)

## دروژې په حالت کي په شونډانو باندي رنګ لګول

پوښتنه : مېرمني ته دروژې په حالت کي په شونډانو باندي دسرخي يا رنګ لګول روادی او که نه؟

ځواب :دسرخي (دشونډانو رنګ) لګول ورته روا دي خو که په خوله کي دتلو احتمال موجود ؤ نو بيا مکروه دی . (احسن ج ٤ مخ ٤٢٤)

## مېرمني ته دنفلي روژې نيول

مېرمني ته دخاوند له اجازې څخه بغير دنفلي روژې نيول مکروه دي، مګر که دهغې خاوند ناروغ ؤ يا يې روژه وه يايې دحج يا عمرې احرام تړلی ؤ ،نو بيا نه دی مکروه او غلام او مينځي ته بغير له اجازې دخپل مالکه روژه نيول روا نه دی.

که يوې ميرمني بغير له اجازې دخاوند څخه روژه نيولې وه نو دخاوند اختيار دی چي ورباندی ماته يې کړي.همدارنګه دغلام دروژې نيولو په صورت کي هم دمالك (بادار) اختيار دی. او مېرمن به بيا ددغې روژې قضا هغه وخت راوړي چي خاوند ورله اجازت ورکړي، او يا له خاوند څخه جلا شي . خو که دچا خاوند په ناروغي يا احرام کي ؤ نو بيا ورته روانه دی چي خپله مېرمن دنفلي روژې له نيولو څخه منع کړي .خو که په دغو حالاتو کي يې هغه منعه هم کړي نو دروژې نيول ورته روا دي.

(عالمګيري ج ۲ مخ ١٤)

## خاوند ته دخپلې مېرمنې دقضايي روژو نيول

پوښتنه : که له يوې مېرمنې څخه درمضان المبارك روژې قضاء شوې او دهغې خاوند غوښتل دهغې پرځاى ددغو روژو قضاء راوړي آيا دى کولاى شي دخپلې مېرمنې روژې ونيسي؟

ځواب : مېرمن به خپلې قضاء شوې روژې پخپله نيسي ،خاوند ته دخپلې مېرمنې دروژو نيول روانه دي. (فتاوى دار العلوم ج٦ مخ ٤٢٢)

## لسم باب

### دماشومانو مسئلې

### اولاد يو امانت دى

اولاد انسان ته يوله ورکړل شوو نعمتو څخه دى . داولاد په سلسله کې په انسان باندې ډېرې شرعي ،اخلاقي او قانوني ذمه واريانې اچول شوې دي .داسلام مبارك دين غواړي چې په انسان کې له هغو اولو شېبو څخه ددينې او دنيوي مسئوليتونو شعور او احساس ژوندى وي. او مور پلار دخپلو بچو روزنه داسلام دمبارك دين په رڼا کې تر سره کړي. که څه هم په ماشومانو خو لمونځ او روژه فرض نه دي،خو ددې لپاره چې دوى دروژې ،لمانځه او نورو عادت واخلي نو لمونځ بايد ورباندې وکړل شي، او روژه ورباندې ونيوله شي. که ډېرې نشي نيولاي نو يوه يادوې هم کافي دي ځکه چې په راتلونکې رمضان المبارك کې هغه کولاى شي تر دې زياتې ونيسي، همدارنګه اسلام غواړي چې هغوته دې عبادت کول ور عادت کړل شي.ځينې مېرمنې دخپلې مورنۍ عاطفې او مهربانۍ په وجه دافکر کوي چې

دروژې په نیولو سره به ماشوم کمزوری شي دهغه روغتیا به دروژې
تراغېزې لاندې راشي، او که کوم ماشوم پخپل شوق باندې روژه
نیسي نو هم دوی دروژې په وجه دماشوم ځېره چې دګل په شان
مړاوې شوې وي لیدل نه غواړي اوله ماشوم څخه دروژې ماتولو
غوښتنه کوي . ایا له دغو مېندو څخه کله چا دا پوښتنه کړېده چې
کله پاك خدایﷻ دقیامت په ورځ دروژې په نه نیولو او داللهﷻ په
نورو احکامو دپابندي نه کولو په وجه هغه ته سخت ترین عذاب
ورکوي، او ډیر ډارونکي عذابونه به وي نو هغه به څه ډول برداشت
کړي؟ دصحابه کرامو (رضی الله تعالی عنهم)هم بچان ؤ او هغوی هم
په خپل مور اوپلار باندې ګران ؤ ،مګر دهغو محبت له عقل سره سم
ؤ، او هغو حضراتو به دقیامت دورځې له لویو ،لویو غمونو څخه
دخلاصون لپاره ددنیا کم وخته تکلیفونه په ځان ورنیول هغو به هم
په خپلو اولادونو باندې مخته تردې چې دروژې نیولو قابل شي
دوژې نیولو کوښښ کاؤ.یوځلې حضرت عمرؓ درمضان المبارك په
میاشت کې یو شراب خور ته وویل:
ته دې ورك شې چې زموږ دماشومانو روژه ده او تا هغه ووهل. (بخاري)
ترهغه وخته پورې چې درمضان المبارك روژه فرض شوې نه وه نو
حضورﷺ به دعا شورا دورځې په سهار باندې ا علان کاؤ چې که چا
لا تردې وخته پورې څه خوړلي او څښلي نه وي، نو هغه دې روژه
ونیسي . ضحابه کرا م (رضی عنهم)فرمایي چې ددغه اعلان په
اورېدو سره به مور پخپله هم روژه نیوله، او په خپلو وړو ماشومانو

باندي به مو هم نیوله، او هغوی به مو له ځان سره دمسجد طرفته بوتلل او دهغو لپاره به مو درنګینو وړیو څخه ساعت تېري جوړاؤ ،کله چي به کوم ماشوم خوراك غوښته او ژړل به یې ، نو موږ به هغه ته دڅه ساعت تېري په برابرولو سره تر هغه وخته په رنګ رنګ مصروفیاتو مشغول ساتو ترڅو به دروژماتي وخت راورسېدو.

(نیل الاوطار ج۲ مخ ۲۰۹)

له دې څخه دا اندازه لګول کېدای شي چي دبچو عمر به څومره ؤ چي په کېل کولو سره به تسلي ورکېدله،او دهغو په مور به څه تېرېدل ،مګر دا هر څه یې ددې لپاره په ځان ورنیول چي هغو ته دماشوم ددینداري ارزښت دنن صبا تر احمقانه ناز او نخرو ورکولو ډېر زیات ؤ

(ترتیب کونکی رفعت قاسمی)

## تر زوال ړومبی دماشوم بلوغ ته رسیدل

که یو ماشوم (که نارینه وي که ښځینه)تر زوال له مخه وخت دبلوغ ته ورسېدو او لا تردې وخته یې هیڅ خوراك او څښاك کړی نه ؤ او دنفلي روژې نیت یې کړی ؤ نو روژه یې سمه شوې ده . (عالمګیري اردو ج۲ مخ ۳۶)

## که په ماشوم کي دروژې نیولو قدرت ؤ

کله چي په ماشوم کي دروژې نیولو قدرت وي، نو هغه ته دي دروژې نیولو حکم ورکړل شي ،او دا په داسي حال کي چي ماشوم ته به دروژې له نیولو څخه څه ضرر نه وي،اوکه ضرر ؤ نو بیا دي ورته

دوروژې حکم نه ورکول کېږي. او کله چي هغه ته دروژه نیولو حکم وشو خو هغه روژه ونه نیوله نو قضاء ورباندي واجب نه ده.
(عالمګېري ج۲ مخ ۳٦)

## دلس کلني ماشوم حکم

له ابو حفص ﷺ څخه وپوښتل شول چي ا یا لس کلني ماشوم دروژې په نه نیولو ووهو؟ نو هغه په ځواب کي وفرمایل: په دې کي اختلاف دی او صحیح دادی چي هغه په منزله دلمانځه کي دی.
(عالمګېري ج۲ مخ ۳٦)

## دنابالغ دروژې ماتول

پوښتنه :که یو نابالغ ماشوم روژه فاسده کړه او یا دهغه پلار ورباندي درحم په وجه ماته یا فاسده کړله ،نو ایا په هغه باندي قضاء واجب ده او که کفاره هم؟

ځواب : که نابالغ روژه ماته کړه ،نو دقضاء راوړل ورباندي ضروري نه دی، خوکه یو ماشوم په لمانځه پوهېدو او بیا یي لمونځ یوځلي پیل بیایې بېرته مات کړ، نو بیا یې بېرته ورباندي راګرزل واجب دی .تر اوه کلنۍ پوري به دناز او ګرانښت په الفاظو ورته دلمانځه کولو وایي او په لس کلنۍ کي به یې دلمانځه په نه کولو سره وهئ.
(احسن الفتاوی پاکستانی ج٤ مخ ٤۳ بحواله رد المحتار ج۲ مخ۱۱۷)

## ماشوم ته دروژې نیول بهتر دي او که ورته په زده کړه کي کوښښ کول؟

پوښتنه : نابالغ طالبانو ته درمضان المبارك په میاشت کي روژه نیول بهتر دي او که دعلم په زده کولو کي کوښښ کول ورته ضروري دی؟

کله چي دروژې په نيولو سره هغه کمزوري کېږي او حال داچي هغه په زده کړه لګياوي؟

ځواب : ددرمختار له عبارت څخه څرګندېږي چي دنابالغو حکم دروژې په باره کي، دلمانځه په څېر دی، چي په اوه کلنۍ کي بايد ورته دلمانځه او روژې حکم وشي او په لس کلنۍ کي بايد دهغو په نه کولو ووهل شي ،نو ددی له خاطره چي په نابالغو زده کونکو باندي دعلم حاصلولو تکليف کم کړل شي عموما درمضان المبارك په مياشت کي اسلامي مدرسي رخصت کېږي .

(فتاوی دار العلوم ج۱ مخ ٤۹۱ بحواله رد المحتار ج۲ مخ ۳۲٦)

## دروژې دمياشتي په ورځ کي بالغ کېدل

که يو څوك درمضان المبارك دمياشتي په ورځ (يعني په يوه ورځ له (۳۰)ورځو درمضان)کي مسلمان شو ، او ياماشوم بالغ شو نو په هغې ورځ کي ورته خوراك او څښاك کول روا نه دي او که يې څه وخوړل نو دهغې روژې هم قضاء په نوي مسلمان او نوي بالغ باندي نشته

(بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۱۹ بحواله هدايه ج۱مخ ۳۰۳)

## دنن سبا رواجونه

ددې زمانې خلګو دنکاح دورځي ، دواده له مېلمستيا، له ختنې (دماشوم سنت کولو) اوعقيقي اوداسي نورو ډيرو کارونو (چي خالص دين دی ) دخپلي ناپوهۍاوناخبرۍ په وجه درسم او رواج منګولو ته په اچولو سره دځان لپاره يو لوی غم جوړ کړی دی او ترټولو اسان شی يې تر انتهائې حده پوري مشکل اوسخت کړی وي

، په ډېرو ځایو کي دماشوم دلومړۍ روژې هم داحال وي چي کله کوم ماشوم لومړۍ روژه نیسي ، نو که یوڅوك هرڅومره غریب ، مسکین اوتنگ لاسی وي خو هغه له بل چاڅخه قرض اخلي ، خیرات غواړي ، لنډه داچي په هر ډول اوله هري لاري وي دهغه ماشوم لپاره نوې جامې جوړ وي ، خپلوانو اوگاونډیانوته دمېلمستیا بلنه ورکوي اوترډېره حده ښه ، ښه خوراکونه برابره وي ، اودماشوم دروژه ماتې لپاره ډول ډول میوې اوشېرنۍ راوړي اوله دې ټولو جنجالونو اوفسادونو سره دهغه ماشوم لومړنۍ روژه پوره کیږي ، ترڅو چي دغه ټول ترتیبات نه وي نیول شوي ، نو که دغه ماشوم دبلوغ ترحدهم واوړې خو روژه نه نیسي ، ماپخپلو سترگو داسي څوك لیدلی دي چي دبلوغ څخه تېر شوی دی خوصرف په دغه وجه باندي یې لاتراوسه روژه نیول نه دي پیل کړي چي دهغه له مور اوپلار سره داقدرت نشته چي دهغه لومړی روژه ماتی په دومره شهرت سره ولمانځي ، لاحول ولاقوة الا بالله .

رښتیا ویلي دي مشهور ادیب علامه اقبال مرحوم : حقیقت په خرافاتو کي ورك شو * دغه امت په روایاتو (رواجو) کي ورك شو .

پاك خدای تعالی دي موږ ټولو مسلمانانو ته عقل رانصیب ،اوزموږ عبادتونه دي درسم اورواج له شکنجو څخه خلاص کړي ، آمین

(رمضان څشي دي ؟ ۱۱۹ مخ)

## يوولسم باب

### دناروغ مسئلې

### ناروغ ته سره له نيت کولو دروژې ماتول

پوښتنه : يوڅوك درمضان المبارك په مياشت کي ناروغ ؤ ، بعضي ورځي به يې روژه نيوله اوبعضي ورځي به يې نه نيوله ، ناڅاپي يې يووخت دروژې نيت وکړ بيايي دسهار دلمانځه څخه وروستو بېرته ماته کړه ، نو په دغه صورت کي ورباندي قضاء لازمه شوې ده اوکه کفاره ؟

ځواب : په دغه صورت کي ورباندي قضاء واجبه ده اوکفاره ورباندي نشته ، ځکه چي هغه مخته تر روژې ماتولو ناروغ ؤ ، او دروژې ماتول ورته صحيح ؤ. (فتاوی دارالعلوم ۴۲۵ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۵۰ مخ)

### دروژې نيولو وروستو ناروغ کېدل

پوښتنه : يوڅوك دروژې پيل کولو وروستو ناروغ شو ، اوحالت يې نازك ؤ که څه هم دمرګ وېره نه وه ، په دغه حالت کي ډاکټر ورباندي دوا وخوړه ، نو آيا دغه څوك به ګنهګار وي اوکنه ؟ اوپه هغه باندي قضاء اوکفا دواړه دي اوکه يوقضاء ؟

ځواب : که دروژې نه ماتولو په صورت کي دناروغۍ دډېر والي اويا دمرګو نې دزيادت غالب ګمان ؤ ، نوافطار ورته جائز دي ، صرف قضاء ورباندي واجبه ده ، کفاره نشته ، اوکه په پېچکاري لګولو سره يې تداوي کېدله نوبيا دروژې ماتول روا نه دي. (احسن الفتاوی ۴ج ۴۲۲ مخ)

## تر روغتیا پورې مړینه

پوښتنه : یوڅوك په داسې حالت کې مړشو چې ورباندې د(۷) اوو ورځو لمونځونه اودوه میاشتې روژه پاته وه ، ډاکټر هغه له روژې نیولو څخه منع کړی ؤ ، ایا کېدای شي چې دهغه وارث دهغه له طرفه کفاره اداء کړي ؟

ځواب :که ناروغ له هم هغې ناروغۍ نه ( چې لمونځونه او روژې پکښې قضاء شوي دي ) مړشو ، نو دهغو روژو اولمونځو قضاء ورباندې لازمه نه ده ، نوځکه دهغو لمونځو فدیه ورکول هم لازم نه دي ، خو دمړي وارثان باید دلمونځو فدیه اداء کړي ، که څه هم هغه وصیت نه وي کړی پاك خدای تعالی ته امید دی چې دلمونځو کفاره به اداء شي ، دهر لمانځه فدیه دسرسایې په اندازه ( پاوکم دوه کیلو غنم اویا دهغو قیمت ) دی .

او دروژو فدیه که څه هم واجبه نه ده ، خو که ورکړله شي نوبده نه ده ، مړي ته یې ثواب رسېږي ، اودیوې روژې فدیه هم دیو لمانځه په اندازه ده. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۶۵ مخ)

## د روژې له نیولو څخه دپوزې دوینې جارې کېدل

پوښتنه : دیو چا دلوړې په وجه دپوزې څخه وینه راځي ، په دغه حالت کې دوه درمضان المبارك میاشتې تېرې شوې ، اوپه راتلونکې کې هم دروغتیا امید کم ؤ ، نو دغه مړسړی دتېر شوي رمضان فدیه ورکړي اوکه دروغتیا انتظار وکړي ؟

ځواب : دغه شخص ناروغ دی ، شیخ فاني نه دی او دناروغ حکم په شریعت کي دادی ، چي که له ناروغی څخه دروغتیا وروستو دومره مده هغه ته په لاس ورغله چي قضاء يې پکښي کولای شوای نو دروژې قضاء په هغه باندي واجب ده اوکه دمرض اومړینی ترمنځ وقفه نه وه نوبیا قضاهمورباندي نشته .(فتاوی دارالعلوم ۳ج ۷۵ مخ قدیم عزیزیه)

پوښتنه : ایا په دغه لاندني صورت کي مفتیان صاحبان څه فرمایې چي دنزلې ددرملو دخوړلو اوڅښلو په ځای نن صبا خلګ د((وکس)) په نوم یوه دوا (چي سوغله کیږي اودهغې دتېزي اثر دماغ ته رسېږي چي له امله يې دنزلې تکلیف ختمېږي) استعمالوي دروژې په حالت کي دغه جائز دی اوکنه ؟ والسلام رضی احمد ... شمس منزل

بسم الله الرحمن الرحيم

الجواب : هوالموفق والمعین : دروژې په حالت کي د(وکس) استعمال داحتیاط خلاف دی ، که هغه دپوډر په ډول نه وي ، نوبیا ورباندي روژه نه ماتیږي لکه دګلاب دګل په بویولو ، عطرو اوداسي نورو چي روژه نه ماتیږي (انه کشم الورد مائه والمسك لوضوح الفرق بین هواء تطیف بریح المسك وشبهه) (ردالمحتار)

## دکولرا اونس ناروغ

(۱) پوښتنه : دکولرا (قی اواسهال) ناروغي خپره شوې وه ، یوڅوک په داسي حال کي چي روژه يې وه په قي اواسهال اخته شو ، ناروغ اوله هغه سره دنزدې خلګو داخیال شو چي ګواکي روژه مانه شوه ، په دغه حال کي ناروغ اوبه وغوښتلې اوخلګو ورته اوبه ورکړې ، ایا

په دغه صورت کي وربانديي قضاء واجبه ده اوكه كفاره اوقضاء دواړه ؟

(۲) همدارنګه ديوچا په نس درد ؤ ، هغه ته دوا ورکړله شوه ، نوپه هغه باندي صرف قضاء لازمه ده اوكه كفاره هم ؟

ځواب : په دواړو باندي صرف قضاء واجبه ده كفاره نشته .
(کفايت المفتي ۲ج ۲۳۰ مخ)

## دماغي ناروغ

پوښتنه : زيد په دماغي تكليف اخته دی ، چي له امله يې كله كله درائشې په ناروغي هم اخته كېږي ، دروژې نه نيولو ته مجبوريږي ، او دروژې په حالت كي دنوكري كار نشي ترسره كولای ، نو هغه روژه ونيسي كه بيا قضاء راوړي اوكه كفاره ؟

ځواب :ناروغ ته دروژې افطار هغه وخت رواكيږي چي دناروغي دزيادت ، يا دتكليف دلوړېدلو وېره وي ، اووروستو يې قضاء لازمه ده ، اودفديې وركول ورته روانه دي . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۸۷ مخ)

## دساه لنډۍ ناروغ

پوښتنه : زيد درمضان المبارك په مياشت كي دټوخي اوساه لنډي په ناروغي اخته دی ، كله چي يوه روژه نيسي نوبله بيانه شي نيولای ، نوځرنګه چي هغه داوخت هم په دغه رنځ اخته دی نوكه (۶۰) شپېتو مسكينانو ته ډوډۍ وركړي نو روژې ورته معاف كېږي اوكنه ؟

ځواب :په پورتنۍ ناروغي اخته زيد باندي دروژو قضاء لازمه ده ، دفديې په وركولو سره قضاء دهغه له ذمې څخه نه ساقطېږي ، هغه

وخت چي دی دغه تکليف ونه لري ، ددغو روژو قضاء دي راوړي ، شيخ فاني ( هغه څوك چي دروژې دقدرت لرلو كله هم ورته اميد نه وي ) كولای شي دروژې فديه وركړي ، په نورو هرډول ناروغانو باندې قضاء لازمه ده . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۶۲ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۶۰ مخ )

## دروژې په حالت كي دبولو بندېدل

دبولو دبندېدلو په صورت كي ډاكټر پيپ دانسان تناسلي غړي ته وراچوي او بولي ورباندي راباسي ، كه دروژې په حالت كي داسي يوصورت مخي ته راغی نو دروژې حكم څه دي ؟ په دغه صورت كي روژه نه ماتېږي ځكه چي مثانې او دتناسلي غړيو تړاوله لړمانه سره نشته ، په دي اړوند درمختار داسي ليكي :

اوافطر فی احليله ماءا اودهنا وان وصل الی المثانة علی المذهب (درمختار) ای قول ابي حنيفة ومحمد معه فی الظاهر الخ وانك ظهر انه لامنفذله والا يجتمع البول فيها بالترشيح كذا يقول الاطباء زيلعی ، الخ فان المثانة لامنفذ لها علی قولهما ( ردالمحتار) خلاصه داده چي مثانې ته دپيپ(نل ) په اچولو سره روژه نه ماتېږي .

## دروژې په حالت كي انيمه (اماله) كول

پوښتنه : دغټو بولو دبنديدلو په صورت كي انيمه ( اماله) كوله كيږي ، په دغه صورت كي روژه له مينځه ځي اوكنه ؟

ځواب :انيمه هم ددوا په څير دننه لګوله كيږي ، نوځكه ورباندي روژه ماتيږي ، اوله امله يې قضاء واجبيږي اوكفاره نشته ، په درمختار كي راغلي دي چي ( اواحتقن اوراستعط الخ قضی فقط)(درمختار)

## دخوني بواسير ناروغ

پوښتنه : يوڅوك دويني دبواسيرو په ناروغي اخته ؤ ، نو کله چي روژه نيسي نو وينه جاري کيږي اودبواسيرو غوټي هم پړسيږي اوډير تکليف وي ، خوکه روژه ونه نيسي نوبيا روغ دي ، نو ايا دهغه لپاره شرعي حکم څه دي ؟

ځواب :دغه ناروغ ته په رمضان المبارك کي دافطار کولو اجازه شته ، خو کله چي هغه جوړ شي اودروژې نيولو قدرت پکښې پيداشي نو هغه وخت دي بيا ددغو روژو قضاء راوړي ، دغه مريض ته دفديې ورکول کافي نه دي ، هغه څوك چي ناروغي يې هميشنۍ وي اودروغتيا اميد ورته ختم شي کولای شي دروژو فديه ورکړي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۸۴ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۶۳ مخ)

## دبواسيرو په غوټويا دانو باندي مرهم لګول

پوښتنه : که دروژې په حالت کي دمقعددننه دغوټو يا دانو په زخم باندي مرهم ياتيل دګوتي په واسطه ولګول شي ، اويا هغه دننه زخمونه ښه پرېمنځي نوآيا روژه به يې روغه وي اوکنه ؟

ځواب : دهغه روژه سمه ده ، مګر احتياط ډيرښه دی ، په حاشيه کي داسي ليکل شوي دي چي په تېر صورت کي که دوايا اوبه په دننه کي هغه حد ته ورسيږي چي معده هغه جذبولای شي اويا پخپله معدې ته رسيږي ، نوبيا ورباندي رژه فاسديږي ، نوځکه مفتي علام احتياط بهتر بللی دی ، نو ددې لحاظ اوخيال ساتل دهر چا لپاره امکان نه لري . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۱۱ مخ)

## دبواسيرو غوټي يا داني بهر ته راوتل

پوښتنه : يوڅوك دبواسيرو په ناروغي اخته دی دليتړين كولو په وخت دهغه دبواسيرو غوټي بهر ته راوزي ، وروستو له استنجا وهلو هغه په زور سره بېرته وردننه كيږي ، كه دهغو دننه ايستلو لپاره لاسونه اويا پخپله دوی په اوبو باندي لوندې كړلي شي څكه چي دهغو ننه ايستل كله غير ممكن اوكله بيا ډير سخت اودتكليف سبب گرزي ، اوكله خوبيا په دغه ډول زور كارولو كي وينه هم جاري كيږي ، نو ، په داسي كولو سره روژه له مينځه ځي اوكنه ؟

(۱) ځواب : په دغه ډول حالت كي دهغه روژه روغه ده ، اوپه دې سره په روژه كي هيڅ تاوان نه راځي ، څكه چي دبواسيرو دغوټو ځای دمقعد په څنډه كي ده چي هلته داوبو په رسېدلو سره نه دمعذور روژه ماتېږي اونه دغير معذور .

(۲) ځواب : دروژې په حالت كي دلاس په لوندولو سره دغوټو ننه ايستل يا دهغو اوبو په لوندوالي سره چي غوټي ورباندي وينځل شوي وي دهغوننه ايستل له روژه فاسدونكو كارونو څخه نه دي ، څكه چي كوم لوندوالي چي داوبو په غوټو باندي پاته كيږي اوله هغو سره يو ځای نس ته داخلېږي له هغه نه ځان ساتل امكان نه لري ، په خاص ډول دشديدو بواسيرو دناروغ لپاره ، اوداسي يوشي چي ورنه دځان ساتلو امكان نه وي كه نس ته داخل شي نو هغه روژه ماتونكي نه دی لكه دخولې پرېمنځلو وروستو دلوندوالي پاته كېدل

۔ (فتاوی رشيديه كامل ۳۷۲ مخ)

دبواسیرو غوټي ترڅای دحقنې ډېري لاندي وي ، اودمقعد له لاري داخلیدونکی شي چي دحقنې ترحده ونه رسېږي نو روژه نه فاسده وي نو ددغوغوټو په اوبو لندول او وروباندي مرهم لګول اوبیا دهغو پورته کول روژه نه ماتوي ، مګر دلوندې شیشي پورته کولو سره روژه ماتېږي ، ځکه چي هغه دحقنې ترځایه رسېږي.

(احسن الفتاوی ۴ج ۲۳۰ مخ)

## دبې هوښۍ اولیونی حکم

که درمضان المبارك په یوه ورځ کي څوك لیونی شو ، یا له پخوا څخه عارضي لیونی ؤ او درمضان المبارك په یوه ورځ کي روغ شو نو دهغې روژې قضاء واجب ده ، خو که ټوله ورځ یا تردې زیات وخت یې ددغه لېونتوب په حالت کي تېر شو نوبیا وروباندي قضاء واجب نه ده ، خوکه چاته بیهوشي پیښه شوه نوقضاء واجب ده ، بیهوشي که تریوې ورځي کمه وي اوکه زیاته په نشه کي ډوب شوی اوپه ژور خوب کي تللي هم دغه حکم دی کوم چي دبې هوښې دي ددي پکي څه فرق نشته چي هغه پخواتر دې دنشې عادت لرلو اوکنه .

(کتاب الفقه ج ۱ ۸۸۵ مخ)

## دشوګر ناروغ

پوښتنه : څوکاله کېږي چي زید دشکري په ناروغي اخته دی چي له امله یې کمزوری اوډنګر شوی دی ، دروژې نیول ورته ډېر سخت دي په خاص ډول په سختي ګرمي کي نوایا دهغه لپاره شرعي حکم څه دی ؟

ځواب : دارنګه ناروغ ته چي دکمزوري يا مرض په وجه روژه نشي نيولاي نو درمضان المبارك په مياشت کي دروژې نه نيول ورته صحيح دي ، ليکن ترڅوپوري چي دروغتيا اميد وي ترهغه دفديې ورکول نه کافي کيږي ، بلکه له روغېدلو وروستو يې قضاء لازمه ده ، اوکه دروغتيا اودمرض پای ته رسېدو اميد ختم شو ، نوبيا دي دهغو رو ژوفديه ورکړي ، اودهري روژې فديه دوروکي اختر دصدقې (سرسايې) په اندازه ده .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۷۴ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۵۹ مخ)

## دتي ـ بي ناروغ

پوښتنه : په کلي کي دتې ، بې ناروغي خپره ده نزدې څلور مياشتي کيږي چي تر تداوي لاندي ده ، په اول کي موايکسرې اخستې وي چي دسږوخرابي پکښي ښودله شوې وه ، اوڅلور مياشتي وروستو موبيا ايکسرې واخستې چي پکښی له روپی څخه لس يا دولس انې فايده شوې وه ، دواجاري ده اوډاکټر صاحب وينا ده چي روژه دي نه نيسي ايا په دې اړوند شرعي حکم څه دي ؟

ځواب : دتې بې ناروغ ته دتاوان رسيدلو له وېرې ډاکټر صاحب هغه ته دروژې نه نيولو اجازه ورکړې ده ، نوبايد دهغه له وينا سره سم عمل وشي ، هغه پخپله عالم اويا حاذق حکيم دی ، نوځکه دهغه رايه معتبر ده ، کله چي له دغې ناورغی څخه جوړشو نوبيا دي قضاء راوړي .

(فتاوی رحيميه ۲ج ۳۹مخ)

## له ناروغۍ وروستو دکمزورۍ پاته کیدل

که یوڅوك له ناروغي څخه جوړشو ، خومګر هغه لاډیر کمزوری ؤ ، اوغالب ګمان داؤ چي که روژه ونیسي نوبېرته به ناروغ شي نوبیا هم ورته دروژې نه نیول روا دي (درمختار ۱۱ج ۱۵۳ مخ)

## داس سوربدلو په وجه دمنو وتل

پوښتنه : یوچاته ډیر ځله داسي پېښیږي چي څه وخت په اس باندي سپور شي نوداس دمنډي په وجه دهغه تناسلي غړي په حرکت کي کېږي اومني په ټوپ سره وزي ، ناڅاپې درمضان المبارك په یوه ورځ کي هغه په اس سپور شو اوچرته روان ؤ چي داپیښه وشوه ، نودمهرباني له مخي مونږ ددې له شرعي حکم څخه خبر کړي چي په دغه صورت کي قضاء لازمه ده اوکه کفاره هم ؟

ځواب : په هغه باندي نه کفاره شته اونه قضاء بلکه دهغه روژه پخپل ځای روغه ده ، په درمختار کي لیکل شوي دي چي احتلام یا انزال وشي اویا دچارپای دشرمګاه سره دلاس لګولو اولګېدلو په وجه انزال وشي نو روژه وربانديي نه ماتېږي. (امداد الفتاوی ۱ج ۱۷۰ مخ)

## په روژه کي ستن (پېچکاري) اوګلوکوز لګول اووینه لګول

دپېچکاري په ذریعه چي بدن ته کوم شي داخلیږي هغه په عام ډول درګوله لاري معدې اودماغ ته رسېږي اوله یوې داسي لاري څخه هلته ځي چي دادهغو حقیقي لاره ، اودفقهاؤ په وینا سوري نه دی ، دفقهي دکتابونو مختلفو نظرو ته په فهم سره ددې اندازه لګېږي چي فقهاؤ دغه صورت دروژې فاسدونکي نه دی ګرزولی دمثال په ډول

دوه رنګه زخمونه دي چي پکښې ددوا په اچولو سره يې روژه فاسده بلله شوې ده ، آمه (د سرژور زخم) جائفه (دنس ژور زخم) .

(۱) آمه دسر هغه زخم ته ويل کيږي چي ددماغ تراصل پوري رسيدلي وي ، اودهغه په ذريعه دوا هم هغه ځای ته رسيږي .

(۲) جائفه دنس هغه زخم ته ويل کيږي چي ترمعدې پورې ژور تللی وي ، اودهغه په ذريعه دواګاني هم ترنس پوري رسيږي نو ګويا دغه زخمونه ترمعدې اودماغ پوري درسېدلو لپاره بلا واسطه يوه لار اوسوری پيدا کوي ، نو په دغو زخمو کي ددوا اچول روژه فاسده وي خو نور زخمونه بيا داسي دي چي پکښې ددوا په اچولو سره روژه نه فاسدېږي هرزخم چي وي ، حال دادی چي هرزخم چي دبدن داخل ته رسېدلی وي په هغه کي چي دوا واچوې نوبالواسطه معدې يا دماغ ته رسيږي ، مګر روژه وربانديي نه ماتېږي ، دهدايي په اول جلد (۲۰۰) مخ کي راغلي دي چي : که ديو داسي زخم چي دماغ ، اويا نس ته دننه رسيدلی وي تداوي په دوا سره کوي بيا دماغ يانس ته دوا ورننوزي ، نودامام اعظم رحمه الله په نزد روژه ماته شوه ، نو لونده دوا کولای شي چي دغوځايو ته ورسيږي حاصل دادی چي که دپيچکاري په ذريعه کي وينه ورسوله شي اوکه دوا ، نو روژه ورباندي نه فاسدېږي ځرنګه چي دګلو کوز نوعيت همدغسي وي چي درګوله لاري رسول کيږي ، دمعدې يا دماغ دکوم سوري په ذريعه نه رسول کيږي ، نوځکه ورباندي روژه نه ماتيږي.

(جديد فقهي مسائل ۱ج ۹۶ مخ)

## دستني (پېچکاري) په اړوند ددیوبند دعلماؤ فتوی

دابنکاره خبره ده چي دپېچکاري طریقه نه په عهد رسالت کي موجوده وه اونه دامامانو مجتهدینو په زمانه کي ، نوځکه خو نه دهغې حکم په حدیث کي شته، او نه دامامانو دزمانې په دې وجه به دهغې شرعي حکم دفقهي له اصولو، قواعدو او نظرونو باندي دقیاس په لګولو معلومیږي.دهغې ښکاره مثال دادی چي که یو څوك لړم یا مار وخوري نو ښکاره خبره ده چي زهر بدن ته ننوزي، دمار زهر ډېر وخت په دماغ باندي اثر اچوي، او ځیني داسي شیان دي چي دخوړلو په وجه یې بدن پړسیږي،چي په یقین سره یې زهر دبدن داخل ته ننوزي خو تر اوسه ددنیا یو عالم فقهي هم دغه داسي څه نه دي بللي چي روژه دي ورباندي فاسده وبلله شي،همدغه دپېچکاري ښکاره مثال دی بلکه داوربدو څخه چي دپېچکاري اول مېنځته راتلل همداسي ؤ چي دزهر لرونکي دچیچلو په تجربو کولو سره په دې نتیجه رسېدګي وشوه چي ددوا تلېورونی اثر په دې ډول بدن ته رسول کېدای شي.

داچي دمار اولړم په چیچلو روژه ماته نه ده بلله شوې، ددې وجه داکېدای شي کومه چي دبدائع له عبارت څخه څرګندېږي۔ لومړی داچي دبدن په کومه برخه کي دڅه شي په داخلیدلو سره مطلقا روژه نه ماتېږي ،بلکه ددې لپاره (چي روژه ماته کړي) دوه شرطونه دي.

(۱) لومړی داچي هغه شی معدې یا دماغ ته ورسېږي. (۲) دوهم داچي دغه رسېدګي داصلي سوري له لاري وي،که یو شی بغیر له

اصلي سوري،په بله لاره باندي په کيمياوي ډول دماغ يا معدې ته
ورسېږي نو روژه وربا ندي نه ماتېږي. بې له شکه چي دپېچکاري په
ذريعه دوا يا دهغې اغېزه دبدن هري برخي ته رسېږي خو دغه لاره
منفذ اصلي نه دی،همدارنګه که په ګرمي کي يو څوك په سړو اوبو
غسل وکړي نو په دې سره دهغه تنده کمېږي ځکه چي داوبو اجزاوي
دبدن دکوچنو سريو له لاري بدن ته ننوزي، خو هغه هيڅ چاهم
دروژې له فاسدونکو څخه نه دی بللی ، په دې سره دغه شك هم لري
شو چي کلو کوز او نوري پېچکاری، داسي دي چي دهغو په ذريعه په
بدن کي دغذا په څېر تقويه پيداکېږي،نو ځکه بايد دهغو حکم
دتغذيه کېدلو په څېر وای.

ددی ځواب ښکاره دی ،چي قوت رسېدل په مطلق ډول روژه
فاسدونکی نه دی، څرنګه چي په غسل کولو کي سوړوالی روژه
فاسدونکی نه دی،بلکه داصلي سيخي لاري په ذريعه چي کوم شی
معدی يا دماغ ته ورسېږي، نو هغه روژه فاسده وی ،چي دغه شی په
پېچکاري نشي موندل کېدای، که څه هم قوت ورڅخه ورسېږي .

روژه په هغه څه باندي فاسدېږي چي دسيخی مخامخ لاري په ذريعه
معدې يا دماغ ته ورسېږي .

دپېچکاري دوا نيغ په نېغه معدې ته نه،بلکه دخولو او وړو سوريو
له لاري معدې ته ځي، نوځکه روژه نه ماتوي.

(احسن الفتاوی ج۲ مخ۴۲۳)

## دليوني سپي واكسين

كه دپېچكاري په ذرېعه نېغ په نېغه معدې ته دوا ورسوله شي، نو روژه وربانديې ماتېږي دليوني سپي دزهرو ختمولو لپاره واكسين يا پېچكاري لګوله كېږي په هغې سره روژه نه ماتېږي (محمد رفعت قاسمي غفرله)

## دپېچكارۍ حقيقت

دپېچكاري (ستني لګولو) په اړوند چي تر اوسه پوري كومي څېړني شوې دي له هغو څخه دامعلومه شوې ده چي هغه دوړو سورو په ذريعه دوا بدن ته رسوي، نو ځكه روژه نه ماتوي، روژه خو هغه څه ماتوي چي په سيخه او ساده لاره بدن ته ننوزي. نه په ذريعه دوړو سورو، او په داخل دبدن كي ددوا داثر په رسېدلو روژه نه فاسدېږي،لكه څرنګه چي دخزندو زهر او دغسل اثر په بدن كي خپرېږي خو په اتفاق سره روژه نه ماتوي، همدارنګه پېچكاري هم روژه فاسدونكې نه ده.

يادونه: ددې مسئلې څېړنه ما په خپله رساله (المقامات المفيدة فى الآت جديدة)كي كړې ده. (محمد شفيع فتاوى دارالعلوم ج۳ مخ ٦٨)

## دناروغ دروژو دقضاء حكم

كه په يو ښار كي خلګو درمضان المبارك مياشت وليده او بيايې (۲۹) روژې ونيولې او په هغو كي ځيني ناروغان ؤ هغو روژه نه ونيوله نو په هغو باندي د (۳۰) روژو قضاء لازمه ده او كه ناروغ ته دښاروالو حال معلوم نه ؤ نو هم به د(۳۰) دېرشو روژو قضاء راوړي ترڅو دواجبو اداء كېدل يقيني شي . (فتاوى عالمګيري اردو پاكستاني ج۲ مخ ۱۱)

## له روغتیا ورستو تر لمر لویدلو پوري خوراک او څښاک

پوښتنه: دروژې په حالت کي دزید په نس کي سخت درد پیدا شو بیایې دوا وخوړه او هغه درد ارام شو نو هغه ته تر ماښامه پوري خوراك او څښاك نه کول واجب دي او که مستحب؟

ځواب :څرنګه چي مسافر ،حیض اونفاس لرونکو مېرمنو او لېوني ته (کله چي هغه په ورځ کي دروغتیا په حال شي)دخوراك څښاك او نورو پرېښودل واجب دي نو زېد ته هم همدغه رنګه واجب دي.

(احسن الفتاوی پاکستانی ج٤ مخ ٤٣٣)

## دولسم باب

## دمسافر مسئلې

### دسفر تعریف

سفر که روا سفر وي او که ناروا دګاډي او دموټر دسفر په شان بې تکلیفه وي او که دپښو ،اس او نور سفرونو په څېر تکلیفجن وي په هر حال کي دروژې نه نیول پکی جائز دي.

مګر په هغه سفر کي چي بې تکلیفه وي مستحب داده چي روژه ونیوله شي خو که داسي ؤ چي څو نفره په سفر کي سره ملګري ؤ، او هغو روژه نه نیوله او دیو چا په تنها روژه نیولو او دخوراك او څښاك په انتظام نیولو کي هغو ته تکلیف ؤ نو بیا که تکلیف دسفر نه ؤ هم روژه دي نه نیسي . (علم الفقه حصه ۳ مخ ۳۵)

په سفر کي روژه نیول صحیح دی او ثواب یې شته خو که ویې نه نیسي نو اجازت ورته شته .او سفر باید حتما (۴۸) اته ځلو ښت میله وي .(فتاوی دار العلوم قدیم ج۳ مخ ۷۳)

## ایا په روژو کي هم کوتاهي (کموالی ) شته؟

پوښتنه :څرنګه چي دسفر په لمانځه کي تر مقیم لمانځه کموالی موجود دی همدغه رنګه په روژه کي هم کموالی شته او که نه؟ یعني که څوك په سفر کي پوره لمونځ وکړي نو ګنهګارېږي ځکه چي دادنعمت ناشکري ده ایا دغه حکم دروژو هم شته او کنه؟

ځواب : دسفر دهغي روژې په اړوند چي په سفر کي قضاء شوې وي حکم دادی چي وروستو له پای ته رسېدو دسفره به دهغو روژو قضاء راوړي (فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ)
(سورة بقره سپاره ۲ رکوع۶)

دلمانځه لپاره خو په حدیث شریف کي دغه حکم راغلی دی چي دغه کموالی قبول کړی نو امام صاحب دغه امر واجب نیولی دی نو ځکه یې دسفر په لمانځه کي کموالي ضروري ګڼلی دی .او دروژې په اړوند خو په ایت شریف کي اختیار راغلی دي ((که غواړئ روژه نیسئ نو ویې نیسی، او که غواړئ ویې نه نیسئ نو بیا یې قضاء راوړئ)) که سفر اسان وي او دروژې نیولو پکی څه سختي او تکلیف نه وي نو بیاپکي دروژې نیول ډېر ښه دی څرنګه چي پاك خدایﷻ فرمایي (وَأَن تَصُومُوا خَيْرٌ لَّكُمْ) (سورة بقرة رکوع۶)

نو معلومه شوه چي په هغه سفر کي چي تکلیف او سختي پکي نه وي دروژې نیولو فضیلت او ښه والی پخپله پاك خدای ﷻ بیا ن کړی دی، او په لمانځه کي دکمي نه کولو دکفران نعمت قول حضرت محمد ﷺ فرمایلی دی چي دغه هم یوله حکمونو دپاك خدای ﷻ څخه دی. . (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٧٢ بحواله رد المحتار ج٢ مخ١٦٠)

## دتردد (شک) په حالت کي روژه

پوښتنه: یو چا په تردد کي سفریانه لمونځونه کول هغه ته درمضان المبارك دروژې نه نیول روا دي او که نه؟

ځواب: مسافر چي ترکومه وخته پوري په یوځای کي د (۱۵) پنځلس ورځو اوسېدلو نیت نه وي کړی او په شك کي وي چي ځم به او که به پاته کېږم نو ترهغو پوري به لمونځ سفریانه کوي. او دروژو نه نیول هم ورته روادي، وروستو دې بیا قضا راوړي .لنډه داچي په کوم حالت کي دلمانځه سفریانه کول روا وي هلته دروژې نه نیول هم روا دي . (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٧٥ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٥٨)

## یو ورځنی سفر

پوښتنه :ایا که څوك یوه ورځ سفر کوي نوکولای شي روژه ونه نیسي، او که صرف په درې ورځني سفر یاتر دې زیاتو کي کولای شي روژه ونه نیسي؟

ځواب : که سفر (۴۸) اته څلوېښت میله وي نو بیا ورکي روژه پرېښودل صحیح دی په تر دې کم سفر کي دروژې پرېښودل جواز نه لري.. (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٧٣ بحواله رد المحتار مخ١٥٨ فصل فی العوارض)

## د (۱۵) پنځلس ورځني نیت حکم

که یو څوك لا دورتلو ځای ته نه ؤ رسېدلی او په لاره کي یې په کوم ځای کی د(۱۵) ورځو داوسېدلو اراده وکړه نو دا وخت ورته دروژې پرېښودل روا نه دي ، ځکه چي هغه په شریعت کي مسافر نه بلل کېږي، خو که دهلته او سېدلو اراده یې تر (۱۵) پنځلسو دکمو ورځو وه نو بیا ورته دورژې نه نیول روا دي . (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۱۹ بحواله شامي ج۲ مخ ۱۲۸)

## له صبح صادق وروستو سفر کول

پوښتنه :دزید اراده وه چي په ورځ کي سفر وکړي، نو که هغه پېشلمی وکړي خو دروژې نیت ونه کړي نو داجائز دی او که نه؟
ځواب :څوك چي دسهار په وخت کي په سفر کي نه وي هغه ته دروژې پرېښو دل روا نه دي که څه هم په دغه ورځ کي یې دسفر کولو ټینګه اراده وي .(احسن الفتاوی ج٤ مخ ٤٢٧)

## تر غرمې له مخه کورته رارسیدل

په هغه حالت کي چي مسافر په سفر کي ؤ دروژې نیولو اراده یې نه لرله خو تر غرمي (زوال)یو ساعت (ګنټه) له مخه کورته راورسیدو او یايې په دغسي وخت کي په یوځای کي د(۱۵) او یا تردې زیاتو ورځو داوسېدلو نیت وکړ، او لا ترهغه وخته یې څه نه ؤ خوړلي نو په دغه وخت کي دي دروژې نیت وکړي (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۱۹ بحواله هدایه ج۱ مخ ۲۰۳)
که یو مقیم درمضان المبارك په میاشت کي له نیت کولو وروستو سفر کوي نو په هغه باندي ددغې ورځي روژه نیول ضروري دی خو که فاسده یې کړي نو کفاره ورباندي نشته همدا رنګه که یو مسافر

تر غرمې له مخه مقیم شي، او تر دغه وخته یې داسي کوم کار نه وي کړی چي روژه وربانديي فاسده شي، نو هم ددغي ورځي دروژې نیول ورته ضروري دی خو که یې فاسده کړ له نو کفاره وربانديي نشته.

(علم الفقه حصه۳ مخ۳۵)

## روژه لرونکي مسافر ته دروژې فاسدول

که یو مقیم سړي له نیت کولو وروستو مسافر شو، یو څه ولاړ بیا واپس په هغه څه پسي راوګرزېدو چي په کور کي ورنه هېر شوې ؤ کله چي کورته راورسېدو نو روژه یې ماته کړه نو هغه باید کفاره اداء کړي ځکه چي په هغه باندي لا اطلاق دمسافر نه ؤ شوی که څه هم هغه هلته نه دپاته کېدلو په اراده تللی وي او نه هلته پاته شوی وي.

(علم الفقه حصه ۳ مخ۳٦)

## له روژې څخه دخلاصون لپاره سفر کول

پوښتنه : که یوڅوك دروژې څخه دخلاصون لپاره سفر یا مرض پلمه کوي نو داڅنګه دی؟

ځواب : شرعي مسافر او شرعي ناروغ ته دروژې پرېښودل صحیح دی او حیله ،پلمه کول مذموم او قبیح عمل دی. (رد المحتار ج۲ مخ ۱۵۸)

## مسافر روژه نیوله او بیا یې بیرته ماته کړه

پوښتنه :زید په سفر کي دروژې نیت وکړ، خو وروستو یې بیا نیت بدل کړ او خوراك او څښاك یې وکړ نو په دې سره هغه ګنهګاربږي اوکنه؟

ځواب : کفاره نشته خو دروژې پیل کولو وروستو دسفر په پیلولو ،دکفارې په واجبیدلو کې اختلاف دی او راجح قول دادی چې په دغه صورت کې هم کفاره واجبه نه ده.

(احسن الفتاوی پاکستانی ج٤ مخ ٤٤٨ بحواله رد المحتارج٢ مخ١٣٣)

## ایا حضورﷺ په سفر کې نیولې روژه ماته کړې وه

پوښتنه : ویل کېږي چې حضورﷺ دسفر په حالت کې روژه ماته کړې وه او خپلو ملګریو (صحابه وو) ته یې ویلي ؤ چې روژه ونه نیسي ایا دغه خبره سند لري او که نه؟

ځواب :بلي: دسفر په حالت کې دسرور کائنات ﷺ او داصحابانو دروژې دافطار واقعه حقیقت لري ،دحضرت ابن عباس‌رضی‌الله‌عنه بیان دی چې (حضور اقدسﷺ)درمضان المبارك په میاشت کې له مدینې منورې څخه مکې مکرمې ته روان شو او په لاره کې یې په عسقان نومي ځای باندي اوبه وغوښتلې او اصحابانو ته یې هم دروژې ماتولو وویل اوبیا یې روژه ماته کړه .بیایې مکې مکرمې ته تر رسېدلو پورې روژه ونه نیوله.

دادخپلې خوښې کار دی که نیول یې غواړي نو ودې نیسي ،اوکه پرېښودل یې غواړي نو پرې دې ږدي.

په روایتو کې په تصریح سره داهم راغلي دي چې دروژې په وجه داصحابانو حالت بدل شوی ؤ نو ځکه حضورﷺ داسې وکړل .حضرت جابررضی‌الله‌عنه فرمایلي دي چې ځینی داسي اصحابان رض ؤ چې روژه یې ماته نکړه کله چې حضورﷺ خبر شو نو (دخفګان په ډول) یې وفرمایل

چې دغه نافرمان دي ځکه چې حضورﷺ په دغه رخصت باندې عمل وکړ او دحضور غوښتنه داوه چې ټول باید وربانديې عمل وکړي په خاص ډول ددې په وجه چې حضور دمکې مکرمې دفتحې لپاره روان ؤ او دغه سفر دجهاد لپاره ؤ.په هر حال بعضی له اصحابانو (رض) وربانديې عمل ونه کړنو حضورﷺ وربانديې ناخوښه شو. په یو بل روایت کې دي چې په یو سفر کې دیو صحابي حالت ډیر خراب شو، نور اصحابان (رض) دهغه دخدمت لپاره سره راټول شول او په هغه بانديې يې دسیوري کولو بندوبست وکړ، ددې حال په لیدلو سره سرورکائناتﷺ وفرمایل په سفر کې(په ځان باندې دظلم په کولو سره ) روژه نیول هیڅ نیکی هم نه ده . ددغو احادیثو په رڼا کې فقهاؤ کرامو رحمهم الله فرمایلی دي چې دسفر په حالت کې روژه نیول ضروري او واجب نه ده.که چا ونیوله نو په عزیمت يې عمل وکړ او که يې ونه نیوله نو په رخصت بانديې عمل وشو.

که له روژې نیولو څخه دطبیعت خرابي یاتکلیف رسیدلو ویره وه،نوبیايې نیول بهتر دي او که دهغه ملګریو ته دتکلیف رسېدلو ویره وه،نوبیا روژه پریښودل بهتر دي.

(فتاوی رحیمیه ج۲ مخ۳٦ بحواله رد المحتار ج۲ مخ۱٦۰ ومسلم شریف ج۳ مخ ۳٥٦)

## په سفر کې دسختې ګرمۍ په وجه دروژې ماتول

پوښتنه : که یوچاته درمضان المبارك په میاشت کې داسې یو سفر پېښ شو چې شرعا هغه مسافر نه ګرزېدو،دسفر په جریان کې دغرمې دسختې ګرمۍ په وجه بې طاقته شو او په نتیجه کې يې روژه

ماته کړه ،ایا په هغه باندي قضا او کفاره دواړه شته او که صرف قضاء؟

ځواب :په دغه صورت کي په هغه باندي کفاره لازمه نه ده ،صرف قضاء لازمه ده. (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٤٤ بحواله رد المحتار ج٢ مخ ١٥٨)

## دسختي تندي یا سفر په وجه روژه ماتول

پوښتنه: که روژتي دسختي تندي په وجه روژه ماته کړه،او یایې په سفرکي روژه ماته کړه نو دهغه لپاره شرعي حکم څه دی ؟

ځواب : که تنده دومره سخته وه چي ورنه دمړیني یا دعقل دتلو وېره وه نو په هغه حال کي قضاء لازمه ده .همدارنګه ښه نه ده چي په سفر کي دسفرکولو په ورځ روژه ماته کړي،خو که ماته یې کړه نو صرف قضاء لازمه ده. (فتاوی دارالعلوم ج٦ مخ٤٤٠ بحواله رد المحتارج٢ مخ١٥٨).

## ایا مسافر دروژې فدیه ورکولای شي ؟

پوښتنه : مسافر دسفر په حال کي څو روژې ونه نیولې ، نو هغه شرعا کولای شي چي ددغو روژو فدیه ورکړي ؟

ځواب : دهغو روژو به وروستو قضاء راوړي ، فدیه ورکول پکښي کفایت نه کوي ، څرنګه چي په ایت کي راځي (فمن کان منکم مریضا...) (٢پاره : ۶ رکوع ، سورة البقرة)

## په سفر کي دفوت شوو روژو حکم

پوښتنه : دسفر په حالت کي دفوت شوو روژو قضاء ضروري دی اوکنه ؟

ځواب : بلي ، که دغه چاته دقضاء راوړلو وخت په لاس ورغي ، نو دقضاء راوړل ضروري دی ، اوکه هغسي ونشول ، نوبیا دفدیې

ورکولو وصیت لازم دی خوپه دې شرط چي له هغه څخه به مال پاته شوی وي ، خو که څوك دهغه سفر په حالت كي پسي مړشو ، يا كورته درارسېدلو سره سم ومړ، اودقضا راوړلو وخت يې پيدانکړ ، نوبيا دفديې ورکولو وصیت لازم نه دی ، که دهرڅومره روژو دقضاء وخت يې پيدا کړ او پکښي ويې نه نيولې ، نو دهغومره روژو قضا لازمه ده ، او دنه نيولو په صورت كي يې دفديې وصیت لازم دی ، دمثال په ډول په مسافري کي لس روژې وخوړلې شوې ، دغه چاته دپنځو روژو دنيولو وخت پيداشو مگر هغه پکښي قضايي روژې ونه نيولې ، نو دهغو (۵) پنځو ورځو دفديې ورکولو وصیت لازم دي ، دټولو نه .

(فتاوی رحيميه ۲ج ۳۴ مخ)

که يومسافر له سفر ختمېدلو وروستو ، يا يوناروغ له روغېدلو وروستو دومره وخت پيدانکړ چي پکښي دقضاء روژې ونيسي ، نوبيا قضاء دهغه په ذمه لازمه نه ده ، وروستو له سفر ختمېدلو ، يا دروغتيا له پيداکولو چي هرڅومره ورځي هغه ته دقضاء روژو وخت ورغی نو دهغومره روژو قضاء وربانديي لازمه ده (جواهر الفقه ۱ج ۳۸۱ مخ )

## په روژه کي رخصت شوي بيا يې دقضاء راوړلو وخت پيدانکړ

پوښتنه : يوچا دناروغي ، حيض اونفاس اويابل څه په وجه روژه نيول پرېښودل ، نومخته تردي چي ددغو روژو قضاء راوړي هغه مړشو ، نوآيا هغه گنهگاربږي اوکنه ؟

ځواب :که دقضاء راوړلو وخت ورته پیدانشو ، نو هغه روژې ورته معاف دي ، اوکه په روغتیا ، اقامت اوپاکي کي ورته دقضاء راوړلو وخت پیداشو خوهغه ونه نیولي نوبیایې دفدیې ورکولو وصیت واجب دی. (احسن الفتاوی پاکستاني ۴ج ۴۴۸ مخ)

## دروژتی مسافر ، په حالت دسفر کي مړکېدل

پوښتنه : یوځوك درمضان المبارك په میاشت کي مسافر شو اودهغه روژه نه وه چي مړشو ، نودهغه دروژې حکم څه دی ؟

ځواب :دروژې قضاء دهغه په ذمه نشته ، همدارنګه دفدیې اودفدیې دوصیت هم ضرورت نشته (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۳۲ مخ بحواله درالمحتار ۲ج ۱۶۰ مخ)

درمضان المبارك په روژو کي که څوك شرعا رخصت ؤ اویادهغه مجبوري پای نه ؤ موندلی چي هغه له دې دنیا نه یې سترګي پټي کړې ،نو له هغه څخه هیڅ طلب شرعا نشته ، ځکه چي هغه ته داداء کولو وخت نه دی ورغلی ، خوکه دقضاء دراوړلو وخت ورته پیداشوی ؤ اوهغه دسستي په وجه قضاء راوړې نه وه ، نودغه فریضه په هغه باندي دواجب په ډول پاتې ده اوپه دې سره به خدای تعالی هغه نیسي ، همدارنګه له یو چاڅخه دسفریاناروغي په وجه لس (۱۰) روژې قضاء شوې ، کله چي هغه له سفریا ناروغي څخه خلاص شو نو (۵) پنځه ورځي ژوندی ؤ بیا مړشو، نوپه هغه باندي ددغو پنځو ورځو قضاء واجبه ده ، ځکه چي دنورو روژو خوهغه وخت نه دی پیداکړی.

وروستو له مړيني دهغه ، خپلوانو ته ښکار دي چي دهغه دروژو فديه ورکړي ، ترڅو دهغه په ذمه روژې اداء شي ، که هغه مال هم پرې ايښي ؤ اووصيت دفديې ورکولو يې هم کړي ؤ نوبيا په وارثانو باندي دفديې ورکول واجب دي ، اوکه يې وصيت کړی ؤ اومال يې نه ؤ پرايښي ، اويايې دومره کم پرايښي ؤ چي له دريمي برخي څخه يي دهغه دروژو فديه نه پوره کېدله ، اويايې مال ډير پرايښي ؤ خووصيت يې نه ؤ کړی ، نو په دغو ټولو صورتو کي په وارثانو باندي دهغه دروژو فديه ورکول واجب نه ده مګر له مړي سره دهمدر دي او دهغه داخيرت دښېرازۍ اوکاميابۍ په نيت دفديې ورکول ښه کار دی دمړي خپلوان يانور دمړي دروژو اولمونځو فديه ورکولای شي ، خودهغو له طرفه دلمونځو اوروژو قضاء نشي کولای.

(ترتيب کوونکي ، محمدرفعت قاسمی)

## متفرقي مسئلې

### درمضان المبارک په مياشت کي په ډاګه اوښکاره خوراک څښاک کول

پوښتنه : هغه څوك چي درمضان المبارك په مياشت كي بې له څه عذره روژه نه نيسي ، اوپه ښكاره ډول خوراك اوڅښاك كوي نودهغه شرعي حكم څه دی ؟

ځواب : دغه سړی فاسق اوداسلامي شعائرو توهين اوسپكاوی كونكی دی ، كه دالته څوك خليفه وي ، نودغه بې پروا او بې حياته دي دمرګ سزا وركړي ، ددرمختار قول دی چي : كه څوك بې له

شرعي عذره روژه نه نیسي اوپه قصد سره په ډاګه اوښکاره خوراك اوڅښاك کوي ، نو هغه دي داسلام دخلیفه په حکم سره ووژل شي .
(فتاوی رحیمیه ۳ج ۱۰۴ مخ بحواله شامي ۱ج ۱۵۱ مخ)

پوښتنه : په ګرم موسم کي کله چي دروژې نیولو وخت (۱۲) ساعته وي نوایا دروژې دبدلې په کفاره کي غنم ورکول کیدای شي ؟

ځواب : په دغه حالت کي به هم روژه نیسي ، بې له عذره فدیه ورکول صحیح نه دی ، که دناروغي یابل څه په وجه یې په رمضان المبارك کي روژه ونه نیوله ، نوله هغه وروستو به یې بیا قضاء راوړي ، هغه ته هم دفدیې ورکول روانه دي ، فدیه صرف دهغه چا لپاره ده چي دروژې نیولو هیڅ امید ورته نه وي . (عزیز الفتاوی قدیم ۳ج ۷۲ مخ)

شیخ فاني هغه سړي یاښځي ته ویل کیږي چي دژوند په اخېر رسېدلی وي ، په قطعي ډول دفرضو له اداء کولو څخه عاجز وي ، اوجسماني طاقت اودژوند حال یې ورځ په ورځ مخ په خرابي وي ، تردې چي دهغه دضعف په وجه قطعا ددې امید نه وي چي هغه دي کله هم روژه ونیولای شي (مظاهر حق جدید ۲ قسط ۲۱ مخ)

## ایا په سړو ورځو کي دروژو ثواب کمېږي ؟

پوښتنه : له یوچاڅخه دڅه عذر په وجه په رمضان المبارك کي روژې قضاء شوې ،که هغه ددغو روژو قضا دسوړ والي په موسم کي راوړي ، نوایا په ثواب کي یې کمي کیږي اوکنه ؟

ځواب :په سړو ورځو کي دقضاء په راوړلو سره دروژې په ثواب کي هیڅ کمي نه راځي . (فتاوی دارالعلوم ۲ج ۴۹۹ مخ)

## دبی لمانځه روژه

پوښتنه : یوځوك چي درمضان المبارك په میاشت کي روژه نیسي خولمونځ نه کوي ، ایا روژه یې سمه ده اوکنه ؟
ځواب :روژه یې سمېږي ، په لمونځ نه کولو سره ګنهګار دی ، اودلمانځه قضاء دهغه په ذمه پاته ده (په حاشیه کي دي ) چي روژه اولمونځ سره ځانله ، ځانله شیان دي ، اویوپربل موقوف نه دي .
(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹۹ مخ)

## دمرګ په وخت روژه

پوښتنه : که یوځوك دزنکدن په حال کي ؤ اوروژه یې وه ، نوهغه ته باید دروژې په ورماتولو سره شربت ورکړل شي اوکنه ؟
ځواب : په دغه حالت کي دهغه روژه باید ورماته کړل شي اوشربت اونورباید ورکړل شي .(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۷۰ مخ)

## یوځوك بغیر له روژې ماتولو مړشو په هغه دجنازې دلمانځه کولو حکم

پوښتنه : یوځوك دروژې په حالت کي دلوږي اوتندي دسختي په وجه مړشو، مګر دشریعت حکم یې ونه مانه ، او روژه یې ماته نکړه په هغه باندي به دجنازې لمونځ کول کیږي اوکنه ؟ ځکه چي هغه دشریعت خلاف ورزي کړې ده .
ځواب :په دغه صورت کي که دغه سړی دروژې په حالت کي مړشو ، نوهغه ته به پاك خدای تعالی اجر اوثواب ورکړي ، په دې سره هغه نه دی ګنهګار شوی ، نوبیا دهغه دجنازې په لمانځه کي څه شك کېدای شي؟ (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۷۱ مخ بحواله ردالمجتار ۲ج ۱۵۸ مخ)

## اوږدو وختو والو علاقو کي روژه

دروژې دوختو په لړکي په دې خبره باندي دقران کريم اونبوي ﷺ ارشاداتو تصريح دی چي روژه له راختلو دصبح صادق څخه پيل کيږي بيا دلمر ترلوېدلو پوري ، همدارنګه دامت اجماع هم په دغه قول باندي ده ، په ځينی کوچنيو خبرو باندي لږ اختلاف شته مګر تردغه حده دټولو اتفاق دی ، نوځکه خوداڅرګنده ده چي دروژې اصلي وختونه دغه دي .

خودجغرافياوي اوموسمي حالاتو په لحاظ په هغو کي کموالی اوزياتوالی ، هم کېدای شي اوهم کيږي پخپله په پاکسان کي هم دغه رنګه توپير ليدل کيږي ، نوکه چېري دوختونو ترمينځ زيات ياکم توپير وي ، ورځ د(۱۲) ساعتونو په ځای (۱۶) يا (۱۷) ساعته شي ، نوښکاره خبره ده چي بيا به دروژې دغه حکم پخپل ځای پاته وي ، اوکه دمعمول په خلاف فرق وي ، دمثال په ډول ورځ (۲۰) يا (۲۲) ساعته شي ، اوشپه دوه ياڅلور ساعته شي ، نوهم قران کريم اونبوي احاديثو داحکامو په غوښتنه روژه له راختلو دصبح صادق څخه بيا ترلوېدلو دلمر پوري ده ، اوفتوی هم په دغه قول ده .

خومګر ډير وختونه دهغې په وجه غير معمولي تکليف پيداکيږي ، اودسپين ږيرو اوکمزورو لپاره دروژې نيول سختيږي هغو ته په خاص ډول دغه اساني ورکوله کيږي چي که دوئ درمضان المبارک په مياشت کي روژه ونه نيسي نوخير دی ، کله چي په راتلونکي کي موسم ښه اوددې وړشو چي دوی پکښي روژه ونيسي ، نوهغه وخت

دي بيا ددغو روژو قضاء راوړي ، لکه چي فقهاؤ دمړيني پيښونکې لوږه اوتنده هم دروژې ماتولو لپار عذر بللى دى ، په فتاوى عالمګيري ۱ج ۲۰۶ مخ کي ددې مسئلې تفصيل کتلاى شي ، ليکن په هغوځايونو کي چي ورځ هم تر ډيره وخته پوري وي اوشپه هم بيا تر ډيره وخته پوري وي په هغه ډول به دروژې وخت اودرمضان المبارك راتلل تاکي په کوم ډول چي يې دلمونځونو لپاره وختونه تاکل کېږي ، دهغه ځاى داوسېدونکو لپاره له هغوځايونو سره سم عمل کول پکار دى کوم چي دوي ته نژدې وي ، اوهلته دمعمول سره سمه دورځې اوشپې ګرزيد ولړې روانه وي . (جديد فقهي مسائل ۹۴ مخ)

پوښتنه : زيد په هوايي جهاز کي دلوېديځ په لوري روان دى ، لمر لوېږي ، نو هغه په څه ډول لمونځ اداء کړي اوڅه وخت روژه ماته کړي ، اويا برعکس ، دختيځ خواته روان دى ورځ ورته ډيره کوچنۍ شوه ، نو دهغه دلمونځو او روژو په اړوند شرعي حکم څه دى ؟

ځواب : په ردالمحتار کي چي يې ترحديث دجال لاندي کومي مسئلې راوړي دي له هغو نه ثابتېږي چي دلوېديځ په لوري تلونکي که په (۲۴) څلورويشتو ساعتو کي دپنځو وختو لمونځ دهغو په وختو کي اداء کولاى شواى ، نوهرلمونځ دي دهغه له وخت داخلېدو سره سم اداء کړي ، اوکه دهغه ورځ دومره اوږده شوه چي په (۲۴) ساعتونو کي دپنځو لمونځونو وختونه رانغلل نودعامو ورځو دلمونځو تروخت جلاوالى دي اندازه کړي اوبيا دي له هغه سره سم لمونځونه کوي ، دروژې هم همدغه حکم دى ، چي که دصبح صادقه

راختلو څخه بیا د(۲۴) ساعتونو ترپوره کېدلو پوري لمر ولوېدو نوله لمر لوېدلو وروستو دي روژه ماته کړي .

په کومو هیوادو کي چي په ځانګړي ډول ورځ دومره اوږده وي چي په (۲۴) څلورویشتو ساعتو کي صرف دکافي اندازې خوراك اوڅښاك کولو وخت پیدا کیږي ، نو په هغو کي هم ترلمرلوېدلو له مخه دروژې ماتولو اجازه نشته ، اوپه عارضي ډول داوږدې ورځي په کله پېښیدو کي خو په طریقه اولی سره نشته خوکه په (۲۴) ساعته کي دننه لمر ونه لوېدو ، نوبیا دي د(۲۴) ساعتو تر پوره کېدلو دومره له مخه چي دکفایت په اندازه خوراك اوڅښاك پکښي کولای شي ، روژه ماته کړي ، که دروژې پیل (دصبح صادق وخت) هم په سفر کي ؤ ، نوپه هغه باندي بیا روژه فرض نه ده ، وروستو دي بیا قضاء راوړي ، اوکه دروژې دپیل وخت په سفر کي نه ؤ ، نوبیا دروژې نیول ورباندي فرض دي ، که د(۲۴) ساعته روژې برداشت یې نه لرلو ، نوبیا سفر کول ورته روانه دي .

اوځوك چي دختیځ (مشرق) په لوري روان وي کوم وختونه چي په هغه باندي تېرېږي په هغو وختو کي به لمونځ اداء کوي اوله لمر لوېدو وروستو به روژه ماتوي ، ځکه چي د(روژې) معنی ده (له راختلو دصبح صادق څخه بیا ترلوېدلو دلمر پوري امساك (بندوالی) کول (احسن الفتاوی ۴ج ۷۱ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۸۸ مخ

## دسفر په وجه دروژو کمېدل یا زیاتیدل

پوښتنه : یوڅوك دجدې په ښار کي کار کر دی ، هلته یې درمضان المبارك روژې نیول پیل کړل ( هلته دجمعې په ورځ ، او دلته په پاکستان کي ددوشنبې ، په ورځ درمضان المبارك اوله وه ) بیا هغه

سړی دلته راغی ، دلته د (۲۹) نهه ویشتم په ورځ میاشت ونه لیدله شوه ، اودهغه (۳۰) دېرش روژې پوره شوې ، اوس به هغه ددغه ځای له خلګو سره (۳۱) یو دېرشمه روژه نیسي او کنه ؟

ځواب : دغه سړی دی دیکشنبې په ورځ ددغه ځای له خلګو سره روژه ونیسي ، که (۳۱) روژې شي لاهم لکه څرنګه چې یوچا یوائې میاشت ولیده ، اودهغه شاهدي قبوله نشوه ، نو هغه باید دخپلې سپوږمۍ لیدني په اعتبار درمضان المبارك روژه ونیسي ، که بیا داسې وشول چې دديرشو روژو له پوره کولو وروستو میاشت ونه لیدله شوه نوهغه ته یوائې روژه ماتول روانه دی ، بلکه دهغه لپاره حکم دادی چې له خلګو سره روژه ونیسي اوبیا ټول سره په یوځای عید جوړ کړي .(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۸۱ مخ بحواله شامي ۲ج ۱۲۳ مخ)

## یوچا روژه نیول پیل کړل بیا عمرې ته ولاړ

پوښتنه : یوچا دلاهور په ښار کې درمضان المبارك روژې پیل کړې بیا هغه مکې مکرمې ته دعمرې لپاره ولاړ ، هلته اوسېدونکې په روژه نیولو کې یوه یادوه ورځې له مخه ؤ ایا هغه به دهغه ځای له خلګوسره عید جوړ وي او کنه ؟

ځواب : دغه سړی دي دهغه ځای له خلګو سره عید جوړ کړي ، اوله هغه وروستو دي بیا دپاتي روژو قضاء راوړي ، یعني که (۲۷) روژې شوې نو ددوو روژو ، اوکه (۲۸)شوي نوبیا دي دیوې روژې قضاء راوړي ، ځکه چې میاشت کله هم تر (۲۹) نهه ویشتو ورځو نه کمېږي .(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۸۱ مخ)

## اپریشن کول یا داندامو بدلول

په اصل کي دروژې فاسدونکي شیان هغه دي چي دماغ یا معدې ته ورسېږي ، له دغه نه معلومه شوه چي که اپرېشن دبدن په کومه بله برخه لکه لاسو اوپښو کي وي ، نوبیا په روژه باندي څه اثر نه اچوي ، دغه رنګه دغوږ ، شرمګاه ، غتو ورنو ، پوزي او نورو هغو اندامو چي دماغ یا معدې ته سیخه لاره نه لري ٔهم په صرف اپریشن سره نه ماتېږي همدارنګه داندامو بدلون هم روژه نه ماتوي ، ځکه چي روژه خودهغه څه داخلول فاسدوي کوم چي دبدن دروغتیا لپاره وي ، اویا دماغ یامعدې ته تلونکي ، اویا په ګمان غالب سره هغو ته رسېدونکي وي ، دلته خو به دغه مصنوعي اندامونه پخپل ځای کي لګول کیږي ، خو که له اپریشن سره کومه دوا واچوله شوه ، نوبیا وربانديي روژه ماتېږي ، اوپخپله په دماغ اولړمانه کي که داسي اپریشن ؤ چي له هغوڅخه څه شي پري کیدل اورا ایستل کېدل ، نه داچي په هغو کي داخلېدل ، نوبیا وربانديي روژه نه ماتیږي ، خوکه یې په هغو کي دوا واچوله ، یایې پکښي کوم بل شی ولګاؤ ، نوبیا روژه وربانديي ماته ده ، ددې مثل دفقهاؤ دغه جزئیه ده چي که یوڅوك په نیزه باندي په دومره زورو ویشتل شو چي هغه دنس مینځ (خالیګاه) ته ورسیده ، بیا بېرته راوایستل شو ، نو روژه نه ده ماته شوې ، اوکه دغسي هم هغلته پاته شوه ، نوبیا دبعض خلګو نظر دادی چي روژه نه ده ماته شوې ، اوبعض بیا په دې قائل دي چي ماته شوې ده ، دلته صحیح قول دروژې نه ماتېدل دي مګر دعاجز په

خيال دجراحي عملياتو په ذكر شوي صورة كي صحيح،دروژې ماتېدل دي ، ځكه چي دنيزې له ويشتلو څخه مقصد دانسان بدن ته تاوان رسول دي ، اودجراحي عملياتو (اپريشن ) منشاء (هدف ) دانساني بدن جوړيدنه اوسمونه ده ، اوكه صورت داسي وي چي دمعدې دعملياتو پروخت له هغې څخه يوشي راوايستل شي ، بيا پكښي بېرته ولګول شي ، نوبيا ورباندي روژه ماتيږي چي مثال يې دقي كيدل دي ، يعني كه يوځلي له خولې څخه بهر نشي اوبيا بېرته ولګول شي ، نوبيا ورباندي روژه ماتيږي چي مثال يې دقي كيدل دي ، يعني كه قی يوځلي له خولې څخه بهر نشي اوبيا بېرته وخوړل شي ، اويا لاړيه له خولې څخه دباندي په لاس كي راټولي كړلي شي اوبيابېرته په خوله كي واچولي شي نو روژه ورباندي ماتيږي دغه رنګه كه يې دغه اندام بهر ته را وايستلو اوبيايې بېرته هلته ولګاؤ ، نو په دې سره روژه ماته شوه. (جديد فقهي مسائل ۹۹ مخ)

## دخوب په حالت داوريو څخه وينه تېريدل

پوښتنه : زما له وريو څخه وينه راځي ، داځو ورځي په روژه كي له غرمي وروستو يا غرمه وينه روانه وي ، دغه په خاص ډول دروژې دخوب په حالت كي وي ، وينه په لاړيو غالبه وي ، دويښوالي په حالت كي خو ورسره احتياط كوم ، مګر كله چي ويده شم نوبيا وينه نس ته تېريږي ، درمضان المبارك په مياشت كي تراوسه دوه ځلي داسي شوي دي ، زما روژه سمه شوې ده ، اوكه به يې قضاء راوړم؟ زه دشپې خوب نشم كولای ، نوكه په ورځ كي خوب ونكړم نودشپې

عبادت ته مي تاوان رسېږي او نوکري کول هم راته ګرانيږي ، نو زما لپاره شرعي حکم څه دي ؟

ځواب : که صرف ترحلق پوري وينه ورغله اوتېره نشوه ، نو روژه وریاندي نه ده ماته ، همدارنګه که وينه کمه وه اولاړيه زياتي وې يعني دلاړيو رنګ دسور والي په ځای ژېړوي ،نو که هغه نس ته تېري هم شي ،نو روژه ورباندي نه ماتېږي ،خو سره له دې که ويني ترلاړيو کمي هم وې خو که خوند يې په حلق کي معلوم شي، نو روژه ورباندي ماتېږي. همدارنګه که وينه ډېره او لاړې کمي وې ،اوکه دتېريدلو په وخت په حلق کي دهغو خوند محسوس هم نشي نو روژه ورباندي ماته ده .

په کومو صورتو کي چي روژه ماتېږي،په هغو کي که دخوب په حالت کي وي او که په کوم بل عذر سره بې له اختياره وينه نس ته ولاړه ،نو دروژې دنه ماتېدلو دقول ګنجائش معلومېږي. په شامي کي داسي راغلي دي:

ښه داده چي که په نژدې راتلونکي کي يې دروغتيا امېد ؤ، نو روژه دي نه نيسي، وروستو به بيا قضاء راوړي، او که دروژې په حالت کي په غير اختياري ډول وينه نس ته تېره شوه ،نو بيا دي احتياطا دروغتيا په حالت کي دهغې قضاء راوړي . (احسن الفتاوی ج٤ مخ ٤٣٨)

## داسي روغتيا چي پکي دروژې نيولو قدرت نه وي

پوښتنه: يوځوك دی چي په نظر باندي روغ او جوړ زلمی دی ،او هيڅ ډول ښکاره نښي پکي نشته، مګر ډېر زيات کمزوری دی،او هغه

نشي کولای درمضان المبارك روژه ونيسي، دروژې په نيولو سره هغه ته نوره هم کمزوري ور زياتيږي،نو که هغه روژه پرېږدي،نو په اړوند يې دشريعت محمدي ﷺ حکم څه دی؟

ځواب : مسئله داده چي شيخ فاني کولای شي چي روژه ونه نيسي او دروژې فديه ورکړي دشيخ فاني معني داده چي په هغه کي قوت نېستي شوې وي او دروژې نيولو قدرت يې نه وي ـ نو دغه سړی که خلقتا (دپيدايښت له وخته)دومره ضعيف او کمزوری وي چي په هيڅ ډول روژه نشي نيولای ،نو هغه ته روا دی چي دروژې په ځای فديه ورکړي. دفتاوی دار العلوم په حاشيه کي ليکلی دي چي که هغه مور زاده دغسي بې توانه نه ؤ بلکه دځه مرض په وجه په عارضي ډول داسي شوي ؤ، نوبيا دروژې نه نيول ورته روادي، او بيا يې دصحت په شپو ورځو کي قضاء راوړل ورباندي واجب دی. همدغه رنګه دشيخ فاني لپاره هم دغه حکم شته چي که يې وروستو دروژو نيولو قدرت ولرلو،نو بيا به قضا راوړي.

(فتاوی دارالعلوم ج٦ مخ ٤٦٨ بحواله رد المحتار ج٢ مخ١٦٣)

## له روژې نيولو څخه ناروغه کېدل

پوښتنه: يو څوك دلمانځه او روژې ښه پابندي کوي،ليکن کله چي درمضان المبارك پيل شي نو وروستو له نيولو دڅلورو پنځو روژو هغه سمدستي ناروغه کېږي، هغه يو مسکين او د اولاد خاوند دی ،ددوا کولو او يا مسکين ته دخوراك ورکولو وس نه لري ،همدارنګه که په سړو شپو ورځو کي دروژو قضاء راوړي، نو هم دغه حال يې

وي،داسي ناروغه کېږي چي مرګ ته نژدې کېږي ،په دغه صورت کي دهغه لپاره شرعي حکم څه دی؟

ځواب : دغه ډول ناروغ ته (چي په روژه نیولو برلا سی نه وي،دهمېشه رمضان المبارك روژې نیولو او یا دقضا ء له راوړلو څخه دهغه ناروغي زیاتېږي او په هیڅ ډول روژه نشي نیولای) فقهاؤ دفدیې ورکولو اجازه ورکړې ده.

(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٧٨ بحواله رد المحتار ج۳ مخ ١٦٣)

## ایا دازموینو لپاره روژه پرېښودلای شو؟

پوښتنه: که ددنیوي علمونو لکه بي کام،بې اې او داسي نورو دازموینو په مهال دروژې په حالت کي په هغو کي نقصان واقع کېدو ،نو زده کونکي باید څه وکړي؟ روژه ونیسي او که یې پرېږدي، بل وخت یې قضاء راوړي؟

ځواب : په دغه صورت کي دروژې ماتولو او پرېښو دلو چانس نشته، دروژې په حالت کي دي ازموینه تر سره کړي، خدای ﷻ په ورسره مرسته وکړي. (فتاوی رحیمیه ج۲ مخ ٣٤)

## په روژه کي دباجې او دروی غړول

پوښتنه: که یو چا دروژې په حالت کي دروی ،باجه او نور دسرود شیان دلږ وخت لپاره وغړول ،نو روژې ته څه تاوان لري او که نه؟

ځواب : په روژه کي دباجو ،درو او نورو غړول ګناه دی، خو روژه وربانديي نه فاسديږي .

(فتاوی رحیمیه ج۲ مخ ۳۸)

## ایا داختلاج په وجه روژه پرېښودله کېدای شي؟

پوښتنه: مثلاً عمر سره اختلاج یا کوم بل مرض دی چي له امله یې هغه په مطلق ډول روژه نشي نیولای نو هغه ته څه کول پکار دي؟

ځواب :روژه ورته معاف کېدای نشي. که دکوم شرعي قوي عذر په وجه درمضان المبارك روژې نه ونیوله شي، نو وروستو یې بیا قضاء راوړل واجب دي . (فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٨٣ بحواله رد المحتارج٢مخ ١٦٠)

## ایا دمعاش برابرولو دتکلیف په وجه روژه پرېښودله کېدای شي

پوښتنه: درمضان المبارك روژې فرض دي ، مگر دمعاش په وجه لکه کرهنه ،پختن او نورولپاره دروژی قضاء کېدلای شي؟

ځواب :ددغو عذرونو په وجه درمضان المبارك روژې قضاء کول سم او روا کار نه دی، آن چي په روژه کي باید څوك داسي سخت هیڅ یو کار ونه کړي،چي له امله یې دروژې قضاء کولو یا ماتولو ته اړ شي .

(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٤٦٦ بحواله رد المحتارج٢ مخ ١٥٧)

## دمرگ دوېرې په حالت کي روژه ماتول

پوښتنه : که دروژې په وجه دمرگ وېره وه ، نو روژه ماتول واجب دي ، اوکه دماتولو اجازه ده؟

ځواب : که څوك دمرض ، لوږي یاتندي دسختۍ په وجه دمرگ له گواښ سره مخ ؤ ، نو روژه ماتول ورباندي واجب دي ، که په دغه حال یې روژه ماته نه کړه اومړشو ، نوگنهگاردی ، اوکه څوك دروژې ماتولو ته اړایستل شوی ؤ اودنه ماتولو په صورت کي ورته دوژلو گواښ کېدو ، نو دروژې ماتول ورباندي واجب نه دي ، ماتول یې

روا دي ، اونه ماتول يې بهتر دي ،که په دغه ډول مړشي نوثواب يې شته ، اوکه روژه لرونکی مسافر ؤ يا ناروغ ؤ ،نو بيا په دغه صورت کې هم دروژې ماتول ورباندې واجب دي، دغه صورت ته داکراه صورت ويل کيږي . (احسن الفتاوی پاکستاني ۴ج ۴۴۱ مخ بحواله بدائع ضائع ۲خ ۲۴)

## په روژه کي دغسل کولو پروخت غرغره کول

پوښتنه : يوچاته دروژې په حالت کې دغسل کولو ضرورت پيښ شو، کله چي هغه غسل کاؤ ، نو غرغره يې و کړه ، اودپوزي تر نرمي برخي پورې يې اوبه ورسولي ، نودهغه غسل به شوی وي اوکنه ؟ اوکه په دغه غسل باندي لمونځ وکړي ، نولمونځ به يې سم شوي وي اوکنه ؟

ځواب : دروژه لرونکي لپاره دغرغرې اودپوزي ترنرمي برخي داوبو رسولو حکم نشته ، چي دروژې ماتېدلو وېره ده ، اوکوم لمونځونه چي يې په دغه غسل باندي کړي دي هغه صحيح دي ، اودراګرزولو ضرورت يې نشته . (فتاوی رحيميه ۵ج ۱۹۸ بحواله مراقي الفلاح ۳۹ مخ)

## ايا په روژه کي داستنجاء داوبو وچول ضروري دی ؟

پوښتنه : له نورالايضاح څخه معلومېږي چي له استنجا څخه وروستو بايد داستنجا خاص ځای په يوشي باندي ښه وچ کړل شي ترڅو چي اوبه دننه خواته جذب نه کړای شي ، ايا په دغه قول باندي فتوی هم ده اوکنه ؟

ځواب : ددې کوم ضرورت نشته ، له استنجاء څخه په روژه باندې کوم اثر نه لوېږي ، خو که حد دحقنې ته اوبه ورسېږي نوبیا وربانډې روژه ماتېږي ، خو په استنجاء کې داسې نه کېږي .
(احسن الفتاوی ۴ج ۴۲۷ بحواله ردالمحتار ۲ج ۱۰۸ مخ)

## ایا په غیبت باندې روژه ماتېږي ؟

پوښتنه : ملاصاحب دلمانځه وروستو حدیث شریف ولوست چې دوه نفره ؤ چې په حضور ﷺ پسې یې دجمعې لمونځ وکړ له لمانځه وروستو حضور ﷺ هغو ته وفرمایل : ستاسو اودس اولمونځ ونشو ، ځکه چې تاسو غیبت کړي دی ، دغه روژه پوره کړئ اوبیا بله ورځ دهغې قضاء راوړئ .

پوښتنه : آیا که څوك غیبت وکړي ، نو لمونځ اوروژه یې نه صحیح کېږي ؟او راګرزول یې ضروري دي ؟

ځواب : په دغه حدیث کې دلمانځه اوروژو دراګرزولو حکم دخاصو خلګو لپاره ؤ ، اودعوامو لپاره دزجر اواحتیاط لپاره دی ، غیبت حرام دی ، دهغه په وجه په عبادت کې نقصان واقع کېږي ، نو ځکه باید له غیبت څخه دځان ساتلو پوره غم وخوړل شي ، مطلب دانه دی چې روژه لمونځ او اودس وربانډې فاسدېږي علماؤ لیکلی دي چې روژه درې درجې ده :

(۱) انسان دروژې په نیت ټوله ورځ له خوړلو ، څښلو اوجماع څخه ځان لیرې کړ ، دادعوامو روژه ده .

(۲) انسان دروژې په نیت له خوړلو ، څښلو اوجماع څخه دځان ساتلو ترڅنګ سترګې ، غوږونه ، پوزه ، ژبه ، لاسونه ، پښې اوټول اندامو نه له ټولو وړو اولویو ګناهونو څخه وساتل ، نودادنیکانو اومؤ منانو روژه ده .

(۳) یوڅوك دروژې په نیت له خوراك څښاك اوجماع څخه ټوله ورځ ځان لیري وساتي اوترڅنګ یې ټول اندامونه له ګناه کولو راوګرزول، سربېره پردغه زړه هم په داسي ډول ددنیاله وسوسو اوفکرو څخه راوګرزوي چي بغیر له پاکه خدایه ﷻ بل هیڅ زړه ته نه ورځي په حدیث شریف کي له حضرت ابوهریرة ؓ څخه روایت دی چي نبي کریم ﷺ وفرمایل : چاچي روژه نیولې وي خوبدکارونه اوبدي خبري نه پرېږدي (یعني غیبت اونورګناهونه کوي ) نودهغه دلوږې ضرورت نشته ، نو له دغه حدیث شریف څخه معلومه شوه چي دروژې قبلېدلو لپاره دخوراك ، څښاك اوجماع ترڅنګ دګناهو اومنکراتو لکه درواغ ، غیبت ، چغلخوري او نورو څخه هم باید دځان ساتنه وکړی .(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۹۶ مخ)

## دیوحدیث شریف تشریح

پوښتنه : یوحدیث شریف دی چي (( که ستاسو په لاس کي داوبوپیاله وه ، او اذان وشو ، نوهغه اوبه وڅښئ ، له دغه حدیث څخه خوپه ښکاره دامعلومېږي چي له صبح صادق وروستو هم خوراك اوڅښاك روا دی ، آیا دحدیث مطلب هم دغه دی ؟

جواب : محدثينو كرامو رحمهم الله ددغه حديث مبارك مختلفي وجي ښوولې دي .

لمړی، داچي كله دروژه لرونكي داغالب گمان وي چي اذان له وخته څخه مخكي وشو .

دوهم داچی له دينه دحضرت بلال ﷺ هغه اذان مراد دی چی ترصبح صادق له مخه به دخلگو دراپورته كولو لپاره كېدو .

دريم داچي دغه حديث دافطار (روژه ماتي) په اړوند دی .

مقصد دادی چي دروژه ماتې په حالت كي داذان اورېدلو اوهغه ته دځواب وركولو لپاره افطار ځنډول بايد ونشي .

زما په خيال دالاندنی وجي هم كېدای شي

اول : ددغه حديث له روژې سره هيڅ تړاؤ نشته ، بلكه مقصد ورنه دادی چي كله مودڅښلو لپاره داوبو پياله په لاس كي وه اوپه دغه حالت كي اذان پيل شو ، نوتاسو هغه اوبه وڅښئ ، داذان اورېدلو اوځواب وركولو لپاره اوبه مه پرېږدئ .

دوهم : په حديث شريف كي د(ندا) لفظ دی چي ورنه اقامت مراد كېدلای شي يعني كه په داسي حالت كي اقامت پيل شو-چي ستاسو په لاس كي داوبو پياله وه ، نو هغه اوبه دي وڅښي اوپه اطمينان دي دجماعت په لمانځه كي شريك شي .

(احسن الفتاوی ۴ج ۴۴۴ مخ)

## په رمضان المبارک کي دهوټل خلاصول

پوښتنه : دروژې په میاشت کي دهوټل خلاصول څرنګه دي ؟ هوټل ته هروخت دهر هرمذهب خلګ راځي ، که ناروا وي ، نوآیا دغیر مسلمو لپاره یې خلاصول صحیح دي اوکنه ؟

جواب : درمضان االمبارك داحترام په خاطر دورځي له مخي دهوټل بندول ضروري دی ، که خوراك کونکي دهرمذهب وي.

(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۹۷ مخ)

## دشوال (وړوکي اختر) روژې

دوړوکي اختر په میاشت کي ، دعید له ورځي وروستو دمیاشتي ترپای رسېدو پوري چي په هره نېټه یې وغوښتل چي شپږ روژي ونیسي ، نونیولای یې شي ، دادرمضان المبارك له فرضي روژو وروستو داسي دي لکه له فرض لمانځه وروستو دسنتو اونفلو کول : دمشکوة شریف په (۱۷۹) مخ کي لیکلي دي چي چا درمضان المبارك روژې ونیولې ، اوبیا یې ورپسي دعید میاشتي (۶) شپږ روژې ونیولې ، نوداداسي دی لکه چي ټول کال یې روژې نیولې وي.

تشریح :دټول کال له روژو سره دهغو دبرابرېدلو مطلب دادی چي پاك خدای تعالی دهري نېکي ثواب لس چنده ورکوي درمضان المبارك یوه میاشت روژه به دلسو میاشتو، اودغه نوري (۶) روژې به ددوو میاشتو سره برابري شي ، چي ورنه پوره یو کال روژه جوړېږي ، څومره اسان کار دی اوڅومره لږ تکلیف دی خو اجر او ثواب یې ډېر زیات دی.

## داختر (۶) شپږ روژې له کله نه پيل کيږي

پوښتنه : دوړوکي اختر په مياشت کي (۶) نفلي روژې نيولي کيږي ، چي دعيد له دوهمي ورځي پيل کيږي ، خوکه دعيد له دوهمي څخه پيل نشي ، نو په دغه نوره مياشت کي يې نيولای شي اوکنه ؟
جواب : په درمختار کي ليکل شوي دي چي ، دغو روژو ځانته ځانته نيول بهتر اومستحب دی ، خوپه پرله پسي ډول نيول يې هم مکروه نه دی. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹۱ مخ بحواله ردالمحتار۲ج ۱۷۱ مخ مطلب في صوم السبت)

## دقضاء اوداختر (۶)(۶) روژو دګډون حکم

پوښتنه : که له يوچاڅخه درمضان المبارك (۶) شپږ روژې قضاء شوې وي اوهغه دوړوکي اختر په مياشت کي دهغو قضاء راوړه ، نو دعيد د(۶) روژو ثواب به ورکول کيږي اوکنه ؟
ځواب : درمضان المبارك روژې فرض دي ، که په دغو نيونکو (۶) روژو کي دنفلي روژو نيت وشي نوقضاء نه ده صحيح شوې ، اوکه دقضاء نيت وشي نو نفلي روژې نه دي صحيح شوې ، يعني که نيت دنفلوو روژې هم نفلي شوې ، که نيت دفرضو روژې هم فرضي شوې.
(فتاوی دارالعلوم قديم عزيزيه ۳ج ۴۰ مخ)

## څوارلسم باب

## دنذري روژو مسئلې

## دنذر دوه ډولونه

نذر په دوه ډوله دي : معلق (چي له يوڅه سره تړاو ولري) اوبل غير معلق ( چي په څه پوري تړلي نه وي ) :

معلق نذر : هغه نذر ته ویل کیږي چې دهغه اعتبار په کوم شرط پورې تړل شوی وي ، هغه شرط که مقصد وي هم ، دمثال په ډول که یوناروغ ووایې چي که زه له دغي ناروغی ځخه جوړشوم ، نو زه به دومره روژې نیسم ، له مرض ځخه روغتیا ددغه سړی یوه آرزو اومقصد دی ، اوغیر مقصود : لکه چي څوك ووایې چي که ما لمونځ ونکړ نودومره روژې به نیسم .

اونذر غیر معلق :په کوم ځای اوزمانه پورې نه خاصیږي ، که څه هم نذر کونکي یې خاص کړي (۱) مثال : یوڅوك دانذر کړي چي زه به دجمعې په ورځ روژه نیسم ، خو هغه دجمعې دورځې په ځای ددوشنبې په ورځ ونیوله ، نو هم نذر یې پوره شو (۲) مثال : یوچا دانذر وکړ چي زه به په مکه مکرمه کي روژه نیسم خو هغه یې دلته په کور کي روژه ونیوله ، نو هم نذر یې اداء شو ، خودنذر معلق په روژو کي به دهغه شرط پابندي کوي دکوم چي یې په هغه کي لحاظ کړی دی ، دمثال په ډول که یوڅوك ووایې چي که زه په فلاني مقصد کي کامیاب شومه ، نو زه به دومره روژې نیسم ، نو که هغه مخته تردې چي مقصد یې پوره شي دغه روژې ونیولي ، نودهغه نذر نه پوره کیږي ، له کامیابي وروستو به بیا روژې نیسي .

دنذر اودقسم دروژو ترمینځ فرق دادی چي دقسم روژې که څوك فاسدي کړي ، نوبیا به دقسم کفاره ورکوي ، اوکه یې په ټول عمر کي ونه نیولې ، نوبیا دکفارې ورکولو وصیت کول ورته ضروري دی ، اودنذر دروژو دفاسدولو په صورت کي صرف قضاء لازمیږي ، کفاره نشته ، خووصیت کول په دغو کي هم ضروري دی .

(علم الفقه ۳ج ۴۳ مخ)

## دنذر شرطونه

لومړی : شرط دادی چي څه شي چي هغه نذر کوي ، دهغه دجنس به شرعا کوم څه واجب وي ، نوځکه دناروغ پوښتنه نشي کېدلای .

دوهم : داچي هغه نذر شوی شي به مقصود بالذات وي ، وسیله دبل څه لپاره به نه وي ، لکه داودس اوسجدې تلاوت نذر کول ، دغه نذر نه صحیح کیږي .

دریم : داچي کوم شي چي هغه نذر کوي نو په هغه به نه پخواني واجب وي اونه به په دغه حال کي واجب وي ، نو که څوك دسهار یادماپښین یا دکوم بل وخت لمونځ نذر کړي ، نو دغه نذر یې نه صحیح کیږي .

څلورم : داچي کوم شي چي هغه یې نذر کوي ، هغه به دګناه کارنه وي ، نو که یوڅوك داسي ووایې چي زه به دالله تعالی لپاره دلوي اختر په ورځ روژه نیسم ، نو په دغه ورځ دي روژه نه نیسي ، بله ورځ دي بیا دهغې قضاء راوړي ، نو دغه نذر صحیح دی ، ځکه چي په دغه ورځ خو روژه نیول روا دی ، خو چي دغه ورځ داختر ورځ شوه ، نو منع واقع شوه .

پنځم : شرط دادی چي دکوم کارچي هغه نذر په ځان مني دهغه کار ترسره کېدل به ناممکن نه وي ، دمثال په ډول که څوك دتېري ورځي روژه نذر کوي ، نو دغه نذر صحیح نه دی .

(عالمګېري اردو ۲ج ۲۵ مخ)

## که څوک نذر پوره نکړي نوبیا ؟

کله چي څوك يوڅه په ځان باندي نذر کړي ، نوبيا دهغه پوره کول ورباندي واجب دی ، که يې ترسره نکړي نو ګنهګاربږي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۸ مخ بحواله نورالایضاح ۱۵۰ مخ)

## دنذر دنيت طريقه

اول : نذر په دوه ډوله دی ، يوداچي دنذر ورځ ټاکله شوې وي لکه داچي ای الله تعالی که نن زما دغه کار ترسره شو ، نو زه به سباروژه نیسم یا داچي : ای الله تعالی که زما فلانی مقصد سرته ورسېدو ، نو زه به سبا ، يابله ورځ يادريمه دجمعې په ورځ روژه نیسم ، نو په دغه رنګه روژه کي که له شپې څخه دروژې نيت ونه کړي ، نو ترغرمې يوساعت له مخه هم نیت کول صحیح دی ، اونذر اداء کیږي .(بهشتی زیور ۳حصه ۸ مخ)

دوهم : ډول نذر دادی چي په نذر کي يې دورځي اونېټې ټاکنه ونه کړه ، بس دومره يې وویل چي : ای الله تعالی که زما کار وشو نو زه به يوه روژه نیسم ، اويايې دڅه کارنوم وانه خيست ، بس دومره يې وویل چي پنځه (۵) روژې به نيسم ، نوپه دغه ډول روژه کي له شپې څخه دنيت کول شرط دی ، که له سهار کېدلو وروستو يې نيت وکړ ، نو هغه نذري روژه نه ده شوې ، بلکه نفلي روژه شوه .

(بهشتی زیور ۳حصه ۸ مخ بحواله شرح وقایه ۱ج ۳۶ مخ وعالمګیري ۱ج ۲۱۰ مخ)

## دچټي ، او ناروا شیانو دنذر کولو حکم

که يو چا دڅه کار په خاطر دعبادت کوم نذر په ځان ومانه ، نوبيايې هغه کار وشو ، نوپه هغه باندي ددغه نذر پرځای کول واجب دي ، که په ځاي يې نکړي ، نو ډیر ګنهګاریږي ، اوکه يې چټي ، بې ګټي ، بد

، ناروا شي ( چي په شريعت کي هيڅ داعتبار وړ نه ؤ ) نذر کړ ، نو دهغه پرځای کول واجب نه دی . (بهشتی زيور ۳ حصه ۴۷ مخ بحواله جوهرة النيرة ۲ج ۲۴۳ مخ)

## دپنځو نذري روژو دنيولو طريقه

که يوچا وويل چي : ای الله تعالی ! که زما فلانی کار وشو، نو زه به پنځه روژې نيسم ، نو کله چي هغه کارېي وشو ، نوبيا به پنځه (۵) روژې نيسي ، اوکه ونه شو بيابه يې نه نيسي خوکه يوچا صرف دومره وويل چي زه به پنځه روژې نيسم نوپه دې کي دهغه خوښه ده ، چي ټولي روژې په پرله پسي ډول نيسي اوکه يوه ، يوه يادوې ، دوې نيسي دواړه صورتونه سم دي .

اوکه يې دنذر پر مهال يا په زړه کي اراده وه ، اويا يې په خوله داوويل چي زه به دغه روژې په پرله پسي ډول نيسم ، نوبيا به يې په پرله پسي ډول نيسي ، که يوه روژه هم ورته په مينځ کي پاتې شوه ، نوبېرته به يې له سره نيسي. (درمختار ۱ج ۱۵۵ مخ)

## له نذر وروستو دنفلي روژې نيت

يوچا دجمعې په ورځ روژه نيول نذر کړل ، کله چي دجمعې ورځ راغله ، نو هغه صرف دومره نيت وکړ چي نن زما روژه ده ، دايې معلومه نکړه چي دادنذر روژه ده ، اويا يې دنفلي روژې نيت وکړ ، نو په دواړو صورتو کي نذري روژه اداء کېږي ، خو که دجمعې په ورځ يې دنذر روژه هېره وه ،يايې قصدا دقضاء روژه په دغه ورځ ونيوله ، نو په دغه صورت کي دنذر روژه نه اداء کېږي ، بلکه دقضاء

روژه ونیوله شوه ، دنذر دي بله روژه ونیسي . (بهشتی زیور ۳ حصه ۹ مخ بحواله شرح وقایه ۱ج ۳۱۸ مخ).

## دټول کال روژه نیولو نذر

که یوچا دانذر وکړ چې زه به ټول کال روژې نیسم ، یوه روژه به هم نه پرېږدم ، نوبیا به هم په کال کې دغه پنځه ورځې روژه نه نیسي . اول : دوړوکي اختر په ورځ دوهم : دلوی اختر په لسم . دریم یوولسم خلورم : په دولسم پنځم : په دیارلسم نوري به ټولې نیسي اوبیا به وروستو ددغو روژو قضاء راوړي .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۹ مخ بحواله شرح الوقایه ۱ج ۳۱۸ مخ)

## په نذرکې دجمعې قید لګول

که یو چا وویل چې دجمعې روژه به نیسم ، یا دسفري له لومړی بیا ترلسمې ورځې به روژه نیسم ، دخاص دجمعې په ورځ روژه وربانديواجب نه ده ، اودسفري (سفر المظفر میاشتې ) په هغو ورځو کې وربانديروژه واجبه نه ده ، هروخت چې دهغه خوښه وي هغه وخت دي دغه لس روژې ونیسي ، مګر ټولې به په پرله پسې ډول نیسي ، همدارنګه که څوك ووایې چې که نن زما دغه کاروشو ، نوسبابه روژه نیسم ، نودهغه هم خپل اختیار دی ، هروخت چې غواړي هغه وخت دي ونیسي .

همدارنګه یوچا وویل چې : زه به دمحرم دمیاشتې روژې نیسم ، نو هغه به ددغې ټولې میاشتې روژه په پرله پسې ډول نیسي ،که په مینځ کې ورځخه پنځه ،یا لس روژې پاته شولې ، نو دهغو په بدله

کي دي په نورو ورځو کي روژه ونیسي ، تولي روژې دي له سره نه راګرزوي ، دادهغه خوښه ده چي که په دغه میاشت کي یې نه نیسي نوپه بله میاشت کي دې ونیسي خوتولي به پرله پسې ډول.

(بهشتی زیور ۳ حصه ۴۸ مخ بحواله درمختار ۱ج ۲۹۹ مخ)

## که یوڅوک تر نذر منلو وروستو ناروغ شو

پوښتنه : یوچا نذر ومنلو اومخته تراداء کولو دهغه ناروغ شو ، نو دهغه لپاره شرعي حکم څه دی ؟

ځواب : تر روغتیا دي انتظار وکړي ، که روغ شو ، نو روژې دي ونیسي ، اوکه روغ نشو ، دقدیې ورکولو وصیت دي وکړي ترڅو یې وارثان دهغه له ماله څخه اداء کړي . (فتاوی دارالعلوم قدیم عزیزیه ۱ج ۷۴ مخ)

## پنځلسم باب
## دنفلي روژو مسئلې

دفرضي روژې ماتول په قصد او رضا سره ډیره لویه ګناه ده چي سزایې شریعت کفاره ټاکلې ده مګر نفلي روژه بغیر له څه سختي مجبوري هم ماتولای شي ، په دغه مسئله کي دماتولو ګنجائش هغه وخت شته چي دهغه په ځان پوره باوري چي بیا به یې قضاء راوړم ، مګر دیوځلي پیلولو وروستویې ماتول ښه نه دي ، خوکه ډیرضرورت پیښ شو ، نو شریعت یې دماتولو اجازه کړې ده ، دمثال په ډول که له کوم ځای څخه یومېلمه راشي ، نو که له هغه سره په خوراك کي ګډون ونه شي ، نو هغه خپه کېږي ، اویا چا دمېلمستیا بلنه ورکړه ،

نوکه چېرې هغه په مېلمستيا کې ګډون نه کوي ، نوبلونکی خپه کېږي ، نوبيا دنفلي روژې ماتول روا دي .

زمونږ ډېر ګران محترم اوقدرمن استاد فقهي الامت مفتي محمود صاحب (چې ددارالعلوم ديوبند مفتي اعظم ؤ) به په دارالافتاء کې خپلو ملګريو ته کله کله دحکم په ورکولو سره دهغو روژې ورماتولې ، اوبيا به يې ورته فرمايل چې ددغو روژو په قضاء راوړلو سره به تاسو ته ډبل ثواب درکړل شي ، مخته خوصرف نفلي روژه وه ، دهغې ثواب خووشو مګر نفل له پيل کولو وروستو واجب ګرزي ، اودهغه پوره کول هم واجب دي .

خبرتيا : ځيني داسي خلګ دي چې په ناروغي يا شرعي سفر کې دروژې په وجه ډېر زيات په تکليف کېږي ، مګر روژه نه ماتوي داطريقه غلطه اودشريعت په خلاف ده ، ځکه چې شريعت مريض اومسافر ته اجازه ورکړي ده نو له هغې څخه بايد ګټه واخستله شي

(ترتيب کوونکي : محمد رفعت قاسمي)

## دنفلي روژې په اړوند دحضور ﷺ معمول

ام المؤمنين سيدة عائشة رضی الله تعالی عنها فرمايې چې کله به حضور ﷺ نفلې روژې نيول پيل کړل ، نو مابه ويل چې حضور ﷺ به کله هم روژې نيول ختم نکړي ، اوکله چې به په روژه نه نيولو راغي نومابه ويل چې حضور ﷺ به کله هم روژې ونه نيسي .

تشريح : له دې څخه مطلب دادی چې نبي کريم ﷺ همېشه نفلي روژې نه نيولې ، بلکه په هغو کي دنبي کريم ﷺ معمول مبارک داؤ چې کله

به يې ترډيره وخته په پرله پسي ډول روژې نيولي ، تردې چې دنبي كريم ﷺ دډېرو روژو به وجه به خلګو ته داګمان پيداشو چې شايد نبي كريم ﷺ به كله هم ددغو روژو سلسله ختمه نكړي اوكله به بيا داسي ؤ چې سيد المرسلين ﷺ به ترډېره وخته پوري روژې نه نيولې ، تردي چې خلګو به دافكر كاؤ چې شايد حضور ﷺ به كله هم بيا روژه ونه نيسي .(مظاهر حق جديد ۲ قسط ۲۳ مخ)

## په نفلي روژه كي سپک (كم) عذر

صحيح داده چې بغير له عذره نفلي روژه ماتول هم روانه دی ، خودنفلي اوفرضي روژې دومره فرق شته چې په نفلي روژه كي دكم (سپك) عذر په سبب هم افطار روا دی ، خو په فرضو كي داسي نه ده ، دمثال په ډول كه يوداسي مېلمه پېښ شو چې كه هغه ورسره په خوراك څښاك كي ګډون ونه كړي ، نو مېلمه ياخوراك نه كوي ياخپه كېږي ، اويا يوچا ورته دمېلمستيا بلنه وركړې وي نو په دغه حالت كي كه هغه په خپل ځان كلك باور لاره چې قضاء به يې راوړي ، نوبيا دي نفلي روژه ماته كړي ، اوكه دغه باور يې نه ؤ بيا دي نه ماتوي. (علم الفقه ا ۳حصه ۴۲)

## دنفلي روژې دنيت طريقه

دنفلي روژې په نيت كي كه ددي يادونه وشي چې زه نفلي روژه نيسم ، نو هم صحيح دی ، اوكه صرف دومره نيت وكړي چې زه روژه نيسم ، هم صحيح دی ، په نفلي روژه كي ترغرمې يوساعت له مخه نيت كول هم صحيح دی ، كه ديوچا دورځي ترلسو بجو پوري دروژې

نیولو اراده نه وه خوتردغه وخته یې خوراك اوڅښاك نه ؤکړی اوداوخت یې خوښه شوه چي روژه ونیسي ، نو دروژې نیول ورته صحیح دي . (بهشتی زیور ۳حصه ۹ مخ بحواله قدروي ۴۵ مخ وفتاوی هندیه ۱ج ۱۹۴مخ)

نفلي روژه له نیت کولو وروستو واجبه ګرځي ، که ترصبح صادق له مخه چا دروژې نیت وکړ چي نن زما روژه ده ، بیایې له هغه وروستو ماته کړه ، نودهغې روژې به قضاء راوړي اوکه چا په شپه کي اراده دروژې نیولو وکړه خوترصبح صادق له مخه یې اراده بدله شوه او روژه یې ونه نیوله ، نوبیا وربانديي قضاء واجبه نه ده .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۹ مخ عالمګیري ۱ج ۱۹۳ مخ)

## دښځي نفلي روژه

مېرمني ته بغیر له اجازې دخاونده نفلي روژه نیول روانه دی ، که هغې بغیر له اجازي دخاوند څخه روژه نیولې وه ، نو دخاوند په ورماتولوسره یي ماتېدل روا دي ، بیا چي کله ورته خاوند اجازه ورکړي هغه وخت دي قضاء راوړي .

یادونه : دغه حکم هغه وخت دی چي خاوند په کور کي موجود وي

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۰ مخ بحواله فتاوی خانیه برحاشیه عالمګیري ۱ج ۱۹۴ مخ)

## داخترپه ورځ نفلي روژه نیول

که یو چا داختر په ورځ نفلي روژه ونیوله اونیت یې هم وکړ ، نوبیا هم ورته دروژې ماتول ضروري دی اوقضاء یې هم واجبه نه ده .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۱۰ مخ بحواله هدایه ۱ج ۲۰۰ مخ)

## دمحرم اولوي اخترد مياشتي دنهم روژه

دمحرم دلسمي روژه نيول مستحب دی ، په حديث شريف کي راغلي دي چي چا دغه روژه ونيوله ، نو هغه ته به دتېر کال ټول ګناهونه وبښل شي ، له هغې سره دنهم يا ديوولسم روژه هم مستحب دی ، همدارنګه دلوی اختر دنهمي ورځي دروژې نيولو هم ډير اجر اوثواب دی ، په هغې باندي ديوکال تېر شوي اوراتلونکي ګناهونه بخښل کيږي اوکه څوك دمحرم له لومړۍ نېټې بيا تر نهم پوري روژې ونيسي نو داخوبيا لاډېره ښهٔ ده.

(بهشتيي زيور ۳ حصه ۱۰ مخ بحواله عالمګيري ۱ج ۲۰۰ مخ ومراقي الفلاح ۱۹۳ مخ

## دبرات روژې

دشب برات (شعبان ) پنځه لسمه اودعيد شپږ ورځي نفلي روژو دنيولو هم ترنورو نفلو ( يعني هغو روژو چي ورته خاص فضيلت ثابت نه وي ) ډير ثواب دی ، همدارنګه که دهري مياشتي د څلورلسم ، پنځلسم ، شپاړسم روژې ونيولي شي نو دابه داسي وي چي ګويا هغه ټول عمر روژې ونيولې ، حضور ﷺ به هم دغه دري روژې نيولي دغه رنګه به يې دهري دوشنبې اوپنجشنبي په ورځ هم روژې نيولې نو که په چا کي همت وي دغه روژې هم ثواب لري.

(بهشتی زيور ۳ حصه ۱۰ مخ بحواله عالمګيري ۱ج ۲۰۰ مخ)

**اللهم اغفر لکاتبه و لکل من سعی فيه آمين**

## شپاړسم باب

## هغه عذرونه چي له امله يې دروژې نه نيولو اجازت دى

داداسي مجبورئ دي چي په رمضان المبارك كي دهغو په وجه دروژې نه نيولو اجازت دى .

اول : كه ديوچا دناروغى په وجه دروژې نيولو قدرت نه وي ، يا دمرض دزياتېدلو سخته وېره وي ، نو روژه نه نيول ورته روادي له رمضان المبارك وروستو دهغو روژو قضالازمه ده .

دوهم : دكومي مېرمني چي ماشوم په نس وي او دروژې نيولو په وجه هغې ته يا دهغې ماشوم ته دتاوان رسېدو وېره وي نو روژه دي نه نيسي ، وروستو دي بيا دهغې قضاء راوړي .

دريم : كه كومه مېرمن خپل ياپردي ماشوم ته شيدې وركوي ، نو كه هغه روژه ونيسي دماشوم لپاره شيدي ختمېږي اوماشوم ته تكليف رسېږي نو هغه دي روژه نه نيسي ورو ستو دي بيا قضاء راوړي .

څلورم : هغه شرعي مسافر ( چي كم تركمه د(۴۸) ميلو سفر په نيت له كوره وتلي وي ) لپاره اجازه دي چي روژه ونه نيسي ، خو كه په سفر كي تكليف اوسختي نه وه ، نوبيا ښه داده چي په سفر كي روژه ونيسي ، خو كه بيا پخپله دهغه لپاره يا دهغه دملګرو لپاره په روژو نيولو كي تكليف ؤ ، نوبيا يې نه نيول بهتر دي .

پنځم : كه يوچا دروژې په حالت كي سفر پيل كړ ، نو دهغه لپاره دابهتره ده چي روژه ونه نيسي ، اوكه دڅه خوړلو اوڅښلو وروستو له سفره كورته راغى ، نوبيا دي ترماښامه له څه خوړلو څخه ځان

وساتي ، اوکه يې لاځه نه ؤ خوړلي چې کورته په داسي وخت کي راورسېدو چې لا دروژې نيت کېدلای شوای (يعني ترزوال يوه نيمه ګنټه له مخه) نوپه هغه باندي لازمه ده چې دروژې نيت وکړي.
شپږم : که چاته دوژلو ګوابښ وشي اودروژې ماتولو ته مجبور کړل شي ،نو دهغه لپاره روا ده چې روژه ماته کړي اوبيا يې قضاء راوړي.
اووم : که څوک دځه ناروغي ، لوږي اويا تندي تردومره سختي لاندي شي چې يومسلمان ، ديندار ه ، کارپوه ډاکټر په خيال ورته دمرګ ګوابښ وي ، نو دهغه لپاره دروژې ماتول واجب دی وروستو بيا ورباندي قضاء لازمه ده.
اتم : دمېرمني لپاره په حيض اونفاس کي روژه نه نيول روا دي ، په دغوورځو کي دي روژه نه نيسي وروستو دي بيا دهغو قضاء راوړي ،ناروغ اومسافر اودحيض اونفاس لرونکې مېرمني ته په رمضان المبارك کي خوراك اوڅښاك كول روا دي ، خو هغو ته لازمه ده چې درمضان المبارك داحترام په خاطر دروژه لرونکي ترمخ خوراك څښاك ونکړي . (جوهرة النيرة ۱ج ۴۸۱ مخ)

## په روژو نيولو کي خپله خوښه

که يوڅوك داسي ناروغ وي چې روژه نيول ورته تاوان ولري ،او دا وېره وي چې که روژه نيسي نو مرض به يې زيات شي، يا به ژر جوړ نه شي ،او يا به ورنه ومري نو هغه دي روژه نه نيسي . کله چې روغ شو بيا دي دروژې قضاء راوړي .مګر په خپله خوښه او خپل نظر دروژې ماتول صحيح نه دی.بلکه ديو مسلمان دينداار طبيب په دې وينا سره

چي روژه تاوان کوي، کولای شئ روژه ماته کړئ .همدارنګه که ډاکتر هيڅ هم ونه ويل ،بلکه تاسو پخپله ددې تجربه لرله او داسي نښانې هم وې چي ستاسو زړه دهغو له مخې دافيصله وکړه چي روژه تاوان لري نو هم دي روژه نه نيسي. او که دډاکتر وينا هم نه وه ،خپله تجربه مو هم نه وه ، دناروغ حال هم معلوم نه ؤ نوبيا دخپل خيال او خوښې هيڅ اعتبار نشته . که دبې ديانته ډاکتر يا بې تجربې سړي په وينا يا پخپل فکر يې روژه ماته کړه، نو بيا به کفاره اداء کوي .

(بهشتی زیور حصه۳ مخ۱۸ بحواله در مختار ج۱ مخ۱۵۳)

په کومو صورتو کي چي روژه نه نيول روادي په هغو کي خلګو ته ددې ښکارندويي روا نه ده چي زما روژه نشته ،ځکه چي په دې باندې ګناه دوه چنده کيږي . داخبره چي په خلکو کي مشهوره ده چي له خدايهﷻ غلا نشته نو له بندګانو څه غلا، يا داچي له خدايه ﷻ پټېدل نشته نو له بندګانو څه پټه ، نو دغه خبري غلطي خبري دي ، اياهره هغه خبره کومه چي خدایﷻ ته معلومه ده بندګانو ته ورښکارول کيږي؟

(ترتیب کونکي محمد رفعت قاسمی)

## اوولسم باب

### هغه عذرونه چي له امله يې روژه ماتول روا دي

۱. ناځاپي دداسي ناروغي پېښېدل چي که روژه ماته نکړي نو ژوند يې په خطر کي لوېږي، او يا ناروغي نوره هم زياتېږي ، نو دروژې ماتول بهتر دی ،دمثال په ډول ناځاپه ديوچا په نس درد شو

او سخت ورنه په تکليف شو ،یا څوك مار وخوړ نو په دغو صورتو کي ددوا خوړل او روژه ماتول صحيح دي، همدارنګه که څو ك دومره سخت تږی شو چې دهلاکيدلو ويره وه نو هم دروژې ماتول ورته روادي . (بهشتی زيور ج۳ مخ۱۷ هدايه ج۱ مخ ۲۰۱ مراقي الفلاح مخ۲۱۲)

۲. هغي مېرمني ته چي ماشوم يې په نس وو ، داسی څه پېښ شول چي دهغې يا دهغې دماشوم دژوند لپاره ګواښ ؤ ،نو هغې ته دروژې ماتول بهتر دي . (بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۱۷ بحواله شرح البدايه ج۱ مخ ۲۰۲)

۳. دخوراك پخولو په وجه يو څو ك دومره سخت تږی شو چي نژدې ؤ چي له تندی مړشي نو روژه ماتول ورته روادي ،خو که چا قصدا داسي کار وکړ چي له امله يې دغه سخته تنده پېښه شوه ،نو هغه په خپله ګنهګار وي.

٤. (بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۱۷ بحواله شامي ج۲ مخ ۱۵۹ درمختار ج۲ مخ۱۵۲)

## اتلسم باب

## دروژې مکروهات

### دروژې حفاظت (ساتنه)وکړئ

دادهر شي قاعده ده چي خپل پوره او سم اثر هغه وخت څرګندوي چي هغه له هغه څه څخه چي هغه ته تاوان رسوي ،اوله هغه څه چي دهغه اثر او اغېزه له مېنځه وړي وساتل شي که له دغو شيانو دهغه ساتنه ونه شي نو کېدای شي چي دګټي پر ځای تاو ان ورسوي ،دبېلګي په ډول که دډاکتريځ علاج وروستو په ورته فرمائل شوي پرهېز عمل

ونشي ،نو نتېجه يې ښکاره ده .روژه يو ډېر مهم او ارزښتناك عبادت دى ، او پکي ډېرې بې شماره گټې پرتې دي ، مگر كه دهغې ساتنه ونه شي ، يعني كه له خوراك څښاك او دروژې له ټولو ضد شيانو سره سره له ځتياتو ،بې گټې غږېدلو ،جنگونو درواغو چغل گېري دوكې او دغسي نور څخه ورته حفاظت ونكړل شي ،نو په نوم روژه خوبه وي خو دروژې چي كومي گټې دي هغه به پكي نه وي .
دمشكوة شريف په ج۱ مخ ۱۲۷ كي په دې اړوند زيات حديثونه راغلي دي چي يو يې داسي دى چي سروركائينات ﷺ وفرمايل ډېر روژه لرونكي داسي دي چي بغير له دې چي لوږه او تنده ورباندي تېره شي له روژې څخه نور هيڅ نه تر لاسه كوى او په شپه كي پورته كېدونكي او عبادت كونكي څو داسي دي چي ورته بغير له پرېشاني دپورته كېدلو نور هيڅ ورته نه حاصلېږى څوك چي روژه ونيسي خو بېكاره كارونه او بې گټې حركتونه پرې نږدي ،نو پاك خداىﷻ دهغه دخوراك څښاك دپرېښودلو هيڅ پروا نه لري.
ددغه حديث مبارك مطلب په پوره ډول واضح دى ،چي تر څو پوري دروژې نيولو تر څنگ دهغې له ضد شيانو پوره پوره پرهېز ونه شي، نو دهغې روژې هيڅ گټه نشته .
دزيات غور او فكر وړ خبره داده چي كوم كار لكه خوراك ،څښاك او نور خو دروژې تر نيت كولو له مخه حلال او روا ؤ خو دنيت په وجه هغه پرېښودل شول او كوم شيان چي تر روژې او نيت له مخه هم حرام ؤ دهغو بدوالى به تر كومي اندازې پوري زيات شي مكر ځيني داسي

خلګ دي چي په روژه کي، صرف له خوراك څښاك او جماع څخه بغير نور له هيڅ يوې ګناه او بدي څخه ځان نه ساتي ،دښځو په اړوند خو څه وېل کېدای نشي خو نارينه ګان دوخت دتيرولو لپاره په بديو لګياوي . دغه خبري په ظاهره ډېري وړې معلومېږي ،خو په حقيقت کي ډېري تاوان رسونکې او دروژې داجر او ثواب نيستی کونکې دی .

*ترتيب کونکی محمد رفعت قاسمی*

**هغه شيان چي روژه ماتوي نه، بلکه مکروه کوي يې**

۱. دڅه شي څکل (خوند کتل) هغه وخت چي هغه تر معدې نه رسېږي که په نفلي روژه کي وي که په فرضي کي .خو که دڅه شي دخوند کتلو ضرورت ؤ ،دمثال په ډول : ديوې مېرمني خاوند خشك او بد طبيعته دی نو دهغې لپاره بلا کراهته روا دی . او همدغه حکم داشپز او نان باي (ډوډۍ پخونکي) لپاره هم دی.

۲. دڅه شي څکل بغير له عذره ، خو که داسي يو عذر وي چي يوه مېرمن کو چني ما شوم لپاره مړۍ ژوېي او دلته بل داسي څو ك نه وي چي روژه ونه لري ،نو بيا صحيح دی .

۳. له خپلي مېرمني څخه خوله اخيستل مکروه دی که په هر ډول وي يعني بوسه فاحشه او غير فاحشه.

۴. په خوله کي دراټولو کړل شوو لاړيو تېرول مکروه دی ، ځکه چي ورته دروژې ماتېدلو وېره ده .

۵. داسې کار کول چې له امله يې داګمان پيدا کيږي چې دروژې په حالت کې دې کمزوري را مېنځته شي خو که دکمزوري پيدا کېدلو غالب ګمان نه ؤ بيا مکروه نه دی.

۶. په ورځ کې دغاښو دناروغي لپاره ددوا استعمالول که تر ماښام پوري پرېښودلو يې دتاوان يا سخت ضرر وېره لرله نوبيا پکې ددوا اچول واجب دی (خو که ددوا اثر نس ته تېر شو نو روژه وربانديې ماته ده)

۷. دېوه شي خوندکتل مثلاً لکه قورت ،خوری، یابل دغسې شي داکراهة په هغه صورة کې ده چې دخوند پر کتلو مجبورنه وي او که چیری مجبور وي بیانده مکروه .

۸. دیوداسی شی خوند کتل چې هغه خوند نه لری هغه که بغیر له مجبوری، وګوري هم مکروه نده .

۹. دکښت کار هم دروژتي لپاره مکروه دی په هغه صورت کې چې ده چې ودي کارته مجبورنه وي او که مجبوري وه نو بيا مکروه نه دی خو دپټي (کښت) خاوند ته اجازه شته چې دپرېکولو پر وخت هلته واوسي ،ځکه چې دهغه لپاره دغلې ساتنه ضروري دي.

۱۰. له جماع سره دنږدې حرکتونو لکه ښکلول شهوت پيداکونکې خيالونه ساتل ، او داسې شيانو ته کتل چې ورسره دمذي دنه وتلو او انزال نه کېدلو اطمينان موجود نه وي مکروه دی. خو که ځان ساتلو کې شك ؤ يا ځان ورنه ساتل کېدای نشوای يعني هغه پوهېدو چې زه ورنه ځان نشم ساتلای نو بيا دغه ټول حرام دي

،تر دې چې که په دغسې صورت کې مذي ووزي یا انزال ونه شي نو روژه سمه ده او که په سبب ددغو کارو مذي ووزي ، نو بیا دروژې قضاء لازمه ده . خو که بغیر له ارادې څخه او بغیر له تسلسله دنظره مذي ووزي نو بیا روژه نه ماتوي ،او که په سبب ددغو حرکاتو دروژې په حالت کې انزال وشي نو بیا کفاره او قضاء دواړه په دې شرط واجبېږي چې په کومو حرکاتو دجماع چې هغه مرتکب شوی دی هغه به ورته حرام وي لکه کتونکي ته په خپل نفس دکنترول نه لرل ،یا ددغه رنگه کېدلو وېره وه خو دهغو ارتکاب محض مکروه ؤ یعني په خپل نفس یې داباور ؤ چې داسې کار ‹لکه جماع› به راڅخه نه کېږي ‹خو هغسې ورڅخه وشول› نو قضاء ورباندې په دې شرط واجبه ده چې دهغه حرکت په ارتکاب کې به یې له ارام طلبي څخه کار نه وي اخستی. کوم چې دانزال باعث وگرزېدو نو په دغه صورت کې هم قضاء اوکفاره دواړه واجب دي.

۱۱. دشنه مسواك استعمالول ‹دکوم چې څه اندازه په خوله کې پاته کېږي› مکروه دي خو که په خوله کې ورته هیڅ نه پاتې کېدل نو بیا په توله ورځ کې روا او مستحب کار دی.

۱۲. تر صبح صادق وروستو په جنابت ‹ناپاکي›کې پاته کېدل خلاف اولی دی ، ښه داده چې په شپه کې غسل وکړل شي ‹کتاب الفقه علی المذاهب الاربعه ج ۱ مخ ۹۲۳›

۱۳. رگ وهل ، ناروغ ته خپله وینه ورکول ‹کومه چې په نن سبا ډاکترانو کې رواج دی ›هم مکروه دی.

۱۴. غیبت کول یعني له چا پټ دهغه بدي بیانول په هر حال کي حرام دی ، او په روژه کي یې گناه نوره هم زیاتیږي.

۱۵. په روژه کي جنگ جگړې او ښکنځل کول (که انسان ته وي که بل هر څه ته) مکروه دی.

۱۲. په روژه کي دغاښو دپوډرو او دوا اویا سکر وتو کارول او په هغو سره دغاښو وینځل هم مکروه دی . (جواهر الفقه ج۱ مخ ۳۷۹)

۱۷. رگ وهل او وینه را ایستل دروژه لرونکي لپاره هغه وخت مکروه دی چي څوك مریض وي.

۱۸. اوکه دغه وېره وه چي دروژې ماتل شاید دناروغي دزیادت سبب شي ،نو که دناروغي دمخنوي یقین ؤ، نو بیا دواړه خبري روا دي.

۱۹. په خوله کي دلاړیو راټولول اوبیا هغه تېرول او داسي څه په خوله کي اچول چي خپرېږي نه مکروه دی. او دهغه څه په خوله کي اچول حرام دي چي په خوله کي خپرېږي ، که څه هم دهغه اثرات تېرېږي نه.

۲۰. دخوراك دذرو په غاښو کي پرېښودل او دهغو شیانو سوغل چي حلق ته په نه تلو یې سړی باور نه لري لکه دمشکو او کافورو پودر ، او دعود او نور بخارات.

۲۱. له مېرمني سره داسي مینه کول چي ورنه شهوت په حرکت راځي ، لکه دهغې ښکلول ،سره سرُوول ، لاس ور باندي تېرول ،او

باربار ورته کتل مکروه دي. خو که په دې سره شهوت نه راپورته کېدو نو بیا نه دی مکروه . او که له دغه ښځه او دجماع له نورو محرکاتو دانزال کېدلو (منو وتلو)وېره وه ، نوبیا دغسي کول حرام دي. (کتاب الفقه ج۱ مخ ۹۲۷)

## نو لسم باب

## هغه شیان چي نه وربانديِ روژه ماتېږي او نه وربانديِ مکروه کېږي

۱. دمسواك وهل.

۲. په سر یا برېتو نو باندي تېل لګول.

۳. په سترګو کي رانجه یا دوا اچول.

۴. دخوشبو بویول.

۵. دګرمي یاتندي په وجه غسل کول.

۶. دهر ډول ستني (پېچکاري )لګول.

۷. په هیره سره خوراك څښناك کول.

۸. په غیر اختیاري ډول حلق ته دلوګي ،دند ،ګرد ،مچ او نور ننوتل.

۹. په غوږ کي په قصد یا خطا داوبو داخلېدل.

۱۰. په غیر اختیاري ډول دقي پېښېدل.

۱۱. په خوب کي دشیطان په خطا کېدلو (احتلام)

۱۲. دغاښو ځخه دویني وتل خو په دی شرط چي نس ته لاړه نشي.

۱۳. داحتلام یا جماع غسل چي تر سهاره له مخ ونشي او په هغه حالت کي دروژې نیت وشي. (جواهر الفقه ج۱ مخ۳۷۹)

۱۴. په خوله اوبه ګرزول په پوزه کي اوبه اچول که څه هم بغير له اوداسه څخه وي ، غسل کول .

۱۵. دزياتي لوندې کپړې اچول په بدن باندي اوپه هغې سره دوجود سړول .

۱۶ اپرېشن کول ، چي پکي روژه لرونکی کمزوري کيږي نه .

(کتاب جواهر الفقه ۱ج ۹۲۴ مخ).

## شلم باب

## دروژې مستحبات

۱. دلمرلوېدلو سره سم ترلمانځه له مخه روژه ماتی کول .

۲. په لندو يا وچو خورماګانو ، که هغه نه وې بيا په اوبو سره روژه ماتی کول .

۳. په تاقو شيانو دروژې ماتول .

۴. دروژه ماتي په وخت ددعاء ماثورې لکه ( اللهم اني لك صمت وعلى رزقك افطرت) ويل.

۵. دپېشلمي پروخت ديو شي خوړل ، که څه هم يو غړپ داوبو وی .

۶. دپېشلمي دومره نه ناوخته کول چي روژه په شك کېږي .

۷. له چټي اوبدو خبرو څخه دژبي ساتل ، پاته شول حرام کارونه لکه غيبت چغلي اوداسي نور ، نو هغه په هرحالت کي حرام دي ، اوځان ساتل ورڅخه واجب دي ، اوپه رمضان المبارك کيورباندي خاص ټينګار شوی دی .

۸. خپلوانو ، غریبانو اوارو خلگو ته خیراتونه ورکول اوترخپله وسه دعلم په طلبکولو ، دقران کریم په تلاوت ، په درود ویلو ، په ذکر کولو اونورو کي شپه اوورځ لگیا کېدل اواعتکاف کول.

(کتاب الفقه ۱ج ۹۳۷ مخ).

## یوویشتم باب

## دفدیې مسئلې

## دشیخ فاني تعریف

شیخ فاني یعني تېر عمره کمزوری سپین ږیری ، یا سپین سري ، چي دومره زوړ شوي وي چي دبیا قوي کېدلو امید هم ورته نه وي ، اویا څوك دومره سخت ناروغ وي چي دبیا روغېدلو نښانې یي نه تر سترگو کېږي ، دشیخ فاني مطلب دادی چي دژوند اخېر نیو شپو ورځو ته رسېدلی وي ، دفرائضو له اداء څخه په قطعي ډول عاجزۀ اودبدن توانایي اوقدرت یې وار په وار مخ په خرابېدو اوله مینځ تلو ۇ ، تردي چي دناتوانی اوکمزوري په وجه ورته قطعا داامید نه ۇ چي هغه دي بیا روژه ونیولای شي ، نو ددغو اوصافو لرونکي ته شیخ فاني ویل کیږي چي یواځي هغه ته روا دی چي دروژو فدیه (مالي بدله) ورکړي ، همدارنگه هغه چاته هم دفدیې ورکول روا دي چي دهمېشه روژې نیول یې په خپل ځان نذرکړي وي اوله هغو څخه عاجز وي ، یعني دژوند داسبابو برابرولو اویانورڅه په وجه خپل نذر پوره کولای نشي ، اودفدیې(مالي بدلې) اندازه دیوې سرسایې برابر ، اویادیوي وړي مسکین دسهار اومابنام مړولو په برابر ده ، له دې

ځخه بغیر ، دنورو ټولو عذرونو مسئله داده چې دعذر پای ته رسېدو سره سم دروژو قضاء راوړل ضروري ده ، په فدیه ورکولو سره روژه نه معاف کیږي.
که یوعذر لرونکی دخپل معذوریت په حالت کې مړ شي ، نو په هغه باندې دهغو روژو دفدیې ورکولو وصیت واجب نه دی کوم چې له امله یې هغه روژې قضاء کړې دي ، اونه دهغه په وارثانو باندې داواجب دی چې دوئ دهغو روژو فدیه ورکړي ، معذرت که له سفر ځخه ؤ که له ناروغۍ اوکه له کوم بل شرعي سببه ، خوکه یوڅوك په داسې حال کې مړ شو چې دهغه عذر له مخه زایل ( ورك ) شوې ؤ اوهغه ته دروژو نیولو وخت ورغلی ؤ خو هغه په دغه وخت کې هغه دقضاء روژې ونه نیولې نو دهغه لپاره داضروري ده چې هغه دهغو روژو دفدیې ورکولو وصیت وکړي په کومو ورځو کې چې هغه له ناروغي ځخه خلاص ؤ اویاله سفر ځخه مقیم شوي ؤ ، اویادعذر لرونکی پکې بې، عذره ؤ ، که شیخ فاني دسفر په حالت کې مړشو، نودهغه له طرفه دهغو روژو فدیه ورکول ضروري نه ده په کومو کې چې هغه دسفر په حالت کې ؤ ځکه چې بل سم سړی دسفر په حالت کې مړ شي نو دسفر دورځو روژې ورته معاف دي ، نو ځکه هغه ته هم معاف دي ، په فتاوی دارالعلوم دیوبند ۶ج ۴۷۰ مخ کې دشیخ فاني تعریف په دې ډول شوی دی چې څوك دومره زوړ شي چې پکښې بالکل قوت نه وي اودمرګ ترپولې رسیدلي وي ، دعمر کوم حد نشته په قوت اوعدم قوت باندې راځرخي ، ترڅو چې روژه نیولای

شي ،نوبايد روژه ونيسي دقضاء روژې دي بيا په پرله پسي ډول نه نيسي ځانته ،ځانته دي يوه ، يوه ونيسي ، دفديې ورکول ورته ترهغه وخته نه کافي کيږي چي ترڅو پکښي دروژې قدرت ختم شوي نه وي ، اوپه يو ډول هم روژه نشي نيولای .

## دفديې لپاره قاعده کليه

که دقسم دکفارې روژې وي ، او دزيات زوړ والي په وجه له روژې نيولو عاجز ؤ ، نو دهغه په بدله کي خوراك ، څښاك ورکول روانه دي اوقاعده کليه داده چي کومه روژه چي پخپله اصل وي اودبل څه عوض نه وي ، نو کله چي دهغې دعوضې روژې له نيولو څخه نااميده شو ، نوبيا ډوډۍ ورکولای شي ، اوکومه روژه چي دبل څه بدل وي ، نو دهغې په عوض کي نشي کولای خوراك ورکړي ، که څه هم په راتلونکي کي دروژې له نيولو څخه نااميده وي ، دمثال په ډول دقسم دکفارې دروژې په بدله کي ډوډۍ ورکول روانه دی ، ځکه چي هغه پخپله دبل څه په بدل کي ده ، اوپه کفاره ظهار اوکفاره رمضان کي دناداری له وجي دغلام له ازادولو ، اويا دزوړ والي له وجي دروژې له نيولو عاجزؤ ، نو دهغې په بدله کي (۶۰) شپېتو مسکينانو ته ډوډۍ ورکولای شي ، ځکه چي دغه فديه دروژې په بدله کي دی .(عالمګيري اردو پاکستاني ۲ج ۲۴ مخ).

## ايا درمضان له مخه دفديې ورکول روا دي ؟

پوښتنه : که درمضان المبارك دروژو دفديې روپۍ تررمضان راتلو له مخه ورکړل شي ، نو صحيح دی اوکنه ؟ يعني تراوسه لا روژه نه ده راغلې خو هغه يې فديه ورکړه ، نو سمه ده اوکنه ؟

جواب : فدیه دروژو بدل دی ، اودرمضان المبارك په راتلو باندي واجبیږي ، نو تررمضان المبارك پیل کېدلو له مخه دفدیې ورکول دسبب دنه وجود له کبله صحیح نه ده ، خو کله چي رمضان المبارك پیل شو نو بیا په یو وار دراتلونکو روژو فدیه ورکولای شي ، دروژې دوار له مخه فدیې ورکولو برخلاف سرسایه په افرادو واجب دی ، چي له رمضان المبارك څخه یې له مخه ورکول هم صحیح دی ، بلکه څو کاله له مخه یې هم ورکول صحیح دی .

(احسن الفتاوی پاکستاني ۴ج ۴۳۶ مخ)

## دفدیې اندازه

دهري روژې په بدله کي چي مسکین ته دسرسایې په اندازه اوړه ورکړي ، اویاسهار ماښام هغه ته پوره خوراك ورکړي ، نو دې ته په شریعت کي فدیه ویله کیږي . (بهشتی زیور ۳ حصه ۲۰ مخ بحواله درمختار ۱ج ۱۴۳ مخ)

په مظاهر حق جدید (۲ج ، ۵ قسط ، ۲۱ مخ ) کي قاعده کلیه په داسي ډول لیکله شوې ده : دهري روژې دبدلې فدیه د(۶۳۳) ګرامو غنمو ، اویا دهغو دقیمت په اندازه ده ، په څه ډول چي په فدیه اوکفاره کي مالك کیدل روا دي ، همهغه ډول اباحت تام روا دی .

یعني که هغه غواړي چي دهري ورځي بدله په پورتنۍ اندازه کوم محتاج ته ورکړي ، اوکه غواړي هره ورځ دوه وخته وړي ته پوره خوراك څښاك ورکړي ، نو دواړه صورتونه روا دي .

## دتېرو کلونو په فدیه کي به دکوم وخت قیمت داعتبار وړ وي ؟

پوښتنه : که له یو چاڅخه دبلوغ وروستو دعمر په پیل کي روژې قضاء شوې وي ، ډیر کلونه وروستو اوس هغه دکمزوري په وجه له

قضاء راوړلو څخه معذور دی ، نو آیا دفدیې دغنمو قیمت به هغه ځلویښت یا څوکاله له مخه چې روژه پکښې قضاء شوې ده لګول کیږي ، اوکه دغه اوس موجوده قیمت؟

ځواب : په فدیه کې اصلا پخپله غنم ورکول واجب دي ،قیمت دهغوځای نیونکی دی ، نوځکه داداء دوخت قیمت داعتبار وړ دی. (احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۱ مخ)

## ایا ناروغ دروژې فدیه ورکولای شي ؟

پوښتنه : که یوڅوك دناروغي په وجه روژه نشي نیولای ، نودهغه فدیه څه دی ؟

ځواب : له روغتیا وروستو د هغو قضاء راوړل فرض دی ، خوکه دروغتیا امید نه ؤ ، اوتراخیره پوري دروژې نیولو له قدرت لرلوبالکل ناامېدي وو ، په کوچنیو اوسړو ورځو کي هم دروژې نیولو قدرت نه ؤ ، نوبیا دي دیوې روژې په بدله کي دپاوکم دوه کیلو غنمو قیمت مسکین ته ورکړي. (احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۲ مخ)

## دڅو په شمېر روژو فدیه یومسکین ته ورکول

پوښتنه : دیوې روژې فدیه دوو مسکینانو ته ، همدارنګه دڅو په شمیر روژو فدیه یو مسکین ته ورکول روا دي اوکنه ؟

ځواب : دیوې فدیې غنم لږ ، لږ څو مسکینانو ته ورکول روا دي ، دغه رنګه یې قیمت ورکول هم روا دي ، همدارنګه دڅو روژو فدیه یومسکین ته ورکول هم صحیح دی ، دکفاري په ډول نه بلکې دسرِسایې په ډول ده ، نو دڅو روژو فدیه یومسکین ته ورکول

صحیح دی ، اوپه دې کې دپریشاني څخه خلاصون دی ، او په لوی رقم کې ډیري سختیاني ستاسو مخې ته راځي. (فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۹۹ مخ)

## فدیه باید چاته ورکړله شي

دواجبي فدیې ورکړه باید هغه چاته وي چې زکات ورکول کېږي ، محتاج اومسکین دهغې مالك ګرزول ضروري دي ، هغه مسکین او محتاج که دهر ځای وي ، نو هغه ځایونه چې ملکیت دچا نه وي ، نو په هغو ځایو کې دروپو لګول صحیح نه دی ، لکه دمسجد ودانۍ دمدرسي وداني ، روژې ځاګاني ، داحادیثو اوفقي کتابونو او نورو کې بغیر دچاله ملك ګرزېدلو روانه دی ، مګر داسي حیله کیدای شي چې دنصاب دمالك څخه بغیر دغه رقم دچا ملك وګرزول شي ، اوبیا دهغه له طرفه په دغوځایو نو باندې مصرف شي که څوك غواړي دغه دفدیې روپۍ دیتیم ، نابالغ مسکین په ضروریاتو ولګوي ، نو دهغه ولي ته ورکول یې روا دي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۵۹ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۷۵-۸۵ مخ)

## دفدیې په روپو دمسکین قرض اداء کول

پوښتنه : دفدیې له رقم څخه دیو قرضداره مسکین قرض روادي چې اداء کړل شي ، اودهغه قرض فدیه ورکونکی اداء کړي اوکه هغه ته روپۍ ورکړي چې وروباندي خپل قرض اداء کړي ؟

ځواب : له هغه رقم څخه دیوقرضداره مسکین قرض پخپله اداء کول روانه دي ، مګر هغه مسکین ته روپۍ ورکول روا دي چې هغه وروباندي خپل قرض پخپله اداء کړي . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۲۵۸ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۸۵ مخ).

## دفديې روپۍ يتيم خاني ته ورکول

پوښتنه : آيا دفديې روپۍ ديتيم خاني په مصارفو کي ورکول کېداى شي اوکنه ؟ اوديونابالغ يتيم ولي (سرپرست ) ته دنابالغ يتيم دمصرف لپاره دفديې روپۍ روا دى اوکنه ؟

جواب : دنابالغ مسکين يتيم په ضرورياتو کي دمصرف کولو لپاره دهغه ولي ته دغه روپۍ ورکول روا دي.

(فتاوى دارالعلوم ۶ج ۲۵۸ مخ بحواله ردالمحتار ۲ج ۸۵ مخ).

## که څوک دفديې په روپو کېړه واخلي اوبيا يي تقسيم کړي

پوښتنه : په فديه کي غريبانو ته کپړه ورکوله کېداى شي اوکنه ؟ که په هغه وخت کي ديوې روژې يا يو لمانځه فديه په نغدي ډول يوه روپۍ وي ، نو که هغه دشلو روپو څادر واخلي اويومسکين ته يې ورکړي ، نو دغه به ديوې ورځي فديه وي اوکه دشلو ورځو ؟

ځواب :په فديه کي دغنمو دقېمت سره سم کپړه اونور ورکول هم روا دي ، اوديوځو روژو دفديې روپۍ يومسکين ته ورکول هم روا دي نوځکه دشلو روپو دڅادر په ورکولو سره دشلو روژو فديه اداء کيږي ، دغلې قېمت اويا ددغومره قېمت سامان ورکول هم روا دى دنابالغ که پلار مسکين ؤ نو ورته صدقه ورکول روا دي ، مګر نابالغ ته خوراك څښاك ورکول کافي نه دى .(احسن الفتاوى ۴ج ۴۳۹ مخ).

## دوویشتم باب

## دافطار (روژه ماتي) مسئلې

### دحلال رزق اهمیت

دروژه ماتي پروخت باید دحلال رزق پای بندی شي ، اوله هرهغه څخه لاهم باید ځان لري وساتل شي چي دحراموالي ترشك وي ځکه چي هغه روژه هیڅ معني اوګټه نه لري چي توله ورځ له حلال خوړلو څخه ځان ساتي خو کله چي دروژه ماتي وخت راشي ، نو بیا په حرامو سره روژه ماته کړله شي څوك چي دډیرو درملو خوړلو له ویري زهر وخوري ، نو په یقین سره هغه سړی دبېوقوف بللو مستحق دی ، حرام هم یو ډول زهر دي ، څرنګه چي زهر دانسان وجود هلاك کوي ، همدغه رنګه حرام دین هلاك کوي اودحلالو خوړلو مثال ددرملو په څېر دي ، چي په کمه اندازه خوړل یې ګټور ، او زیات خوړل یې وجود ته تاوان رسوي .

دروژې مقصد دادی چي حلال هم باید کم وخوړل شي ترڅو ګټور واقع شي ، دنسائي شریف په یو روایت کي حضرت ابن مسعود ﷺ دحضور اقدس ﷺ الفاظ رانقل کوي ( ډیر روژه لرونکي داسي دي چي دروژې له نیولو څخه ورته بله هیڅ ګټه نه وي ، بغیر له لوږي او تندي څخه ) ددغه حدیث شریف مختلف تفسرونه رانقل شوي دي ، بعض حضراتو ویلي دي چي له دې څخه مراد هغه څوك دي چي په حرامو سره روژه ماتوي ، بعض حضرات بیا وایې چي مراد ورڅخه هغه څوك دي چي دحلالو له خوړلو یې ځان ساتلي وي خو دخلګو په

حرامو غوښو (يعني غيبت باندي) روژه ماتوي ، او دنورو رايه بيا داده چي مراد ورڅخه هغه څوك دي چي خپل اندامونه له ګناهو څخه نه ساتي .
دروژه ماتي پروخت هم بايد حلال رزق دومره اندازه وخوړل شي چي نس ورڅخه وپړسيږي ، دالله تعالى په نزد بل هيڅ داسي دډكيدلو شي دومره زيات بد نشته لکه هغه نس چي له حلاله رزقه څخه ډك كړل شوي وي .
دروژې اصلي مقصد دادی چي دهغې په سبب نس خالي وي اوپه بدن كي نفسي غوښتني ختمي شي ، اوله روژې څخه مقصد داهم وي چي دروژه دار په ووجود اونفس كي تقوى پيداشي ، خو په ډير خوراك كولو دغه مقصد لاس ته راوړل امكان نه لري اوپه نفس كي تقوى هغه وخت راتلاى شي چي كمه غذا وخوړله شي ، اودكموالي اندازه داده چي دافطار (روژه ماتي) پروخت هم دومره څه وخوړل شي چي څومره به په نورو شپو كي خوړل كېدل ، داسي نه چي دروژه ماتي پروخت له خوراك څخه دډولو وختو غچ اخيستل كيږي ، اوكه داسي وشي ، نو يقينا به له داسي روژې څخه اصل مقصد ترلاسه نشي .
(احياء العلوم ۱ج ۴ قسط ۵۹۶ مخ)
پنځم شي دروژه ماتي پروخت هم ددومره زيات شي نه خوړل دي چي نس ورباندي ډك شي ، ځکه چي په دي سره دروژې غرض له مينځه ځي ، له روژې څخه مقصد دشهواني اوبهيمي قوت كمول ، او دنوراني اوملكي قوت زياتول دي ، دغه يوولس مياشتي موڅومره

ډېر څه وخوړل او وڅښل ، نو که دا یوه میاشت په هغو کې څه کموالي وکړو نو مړه به شو ؟ مګر زمونږ د خلګو دا حال دي چې دروژه ماتې پروخت دهغو ټولو غچ په یو وار کاږي ، کوم چې به یې بغیر له روژې په ورځ کې خوړل او دپېشلمي په وخت په دې نیت چې په راتلونکې ورځ کې خوبه بیا خوراك نه کوي ، دومره څه خوري چې په خلاصه خوله کې یې کله هم دغومره نه وي خوړلي ، زمونږ دخلګو لپاره روژه داسې شوې ده لکه په شنو غنمو یا په رشکه کې دڅه شي خوشي کول

(فضائل رمضان ۲۹ مخ) .

## دروژه ماتي ورکولو ثواب

دمشکوة شریف (۱ج ۱۷۳ مخ) کې دروژه ماتي ورکولو په اړوند ګڼ حدیثو نه راغلي دي چې مفهوم یې په دې ډول دي : ( که یوچا روژه لرونکي ته روژه مات ورکړ ، نو په دې سره دهغه ټول واړه ګناهونه بخښل کیږي ، او هغه ته دجهنم له اوره څخه خلاصون په برخه کیږي ، اوهغه ته دروژه مات په ورکولو سره دومره ثواب ورکول کیږي ، څومره چې روژتي ته دروژي په نیولو سره ورکول کیږي په دي سره به دروژتي په اجر اوثواب کې هیڅ ډول کمي نه کیږي ، بلکه پاك خدای تعالی به له خپل رحم اوکرم څخه هغه ته دروژه مات ورکولو په بدله کې دروژې نیولو سره سم ثواب ورکوي ، اصحابانو عرض وکړ چې ای دالله تعالی رسوله ! که له چا سره دروژه مات ورکولو قدرت نه ؤ هغه به په څه ډول دغه ثواب ترلاسه کړي ، ځکه چې له مونږ څخه هریو ددې لائق نه دي چې چا ته روژه ماتي ورکړي حضور ﷺ ورته

وفرمايل : دغه ثواب خوپاك خدای تعالی په يوسور (غرڅ) اوبوياشيدو اويايوې خورماسره هم وركوي ، اوچاچي بيا روژتي ته تربسوالي پوري ډوډۍ وركړه ، نو په هغه باندي به پاك خداى تعالى زما له حوض (كوثر) څخه داسي اوبه وڅښي چي دهغو تر ټولو وروكي اثر به داوي چي جنت ته ترداخلېدلو پوري به بيا كله هم هغه تږي نشي .

بعض ناپوهان دچا په كور كي ، يا له بل چا سره روژه نه ماتوي ، او دوئ دافكر كوي چي دروژې ثواب ځي ، اوكه څوك ورته دمهماني بلنه وركړي ، نو دروژه ماتي لپاره ورسره له خپله كوره څه اخلي ، نو داډيره سخته دناپوهۍ اوكم علمۍ خبره ده په دې اړوند په فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴۹۳ مخ كي فتوی داده چي :

پوښتنه : دبعض خلګو دانظر دي چي دبل چا په څه باندي روژه نه ماتوي ځكه چي بيا دروژې ثواب هغه ته رسيږي ، آيا داسمه ده كنه ؟

ځواب : دغه يوه فاسده عقيده ده چي دبل چا په روژه ماتي څوك روژه نه ماتوي ځكه چي بيا دروژې ثواب روژه مات وركونكي ته وركول كيږي ، دحديث شريف مفهوم دادی چي كه يوچا روژه لرونكي ته روژه مات وركړ نو په دې سره به دهغه ګناه وبخښله شي ، او دروژه لرونكي سره برابر ثواب به ورته وركړل شي ، په دي سره به دروژه لرونكي په ثواب كي هيڅ ډول كمي نه كيږي .

(مشكوة ۱ج ۱۷۴ مخ)(مرتب قاسمی)

## دروژماتي لپاره دګینتي اونورو استعمال

دسرورکائنات ﷺ ارشاد مبارك دي چي «دروژې په ماتولو کي تلوار پکار دي» اوهغه بنده چي په روژې ماتولو کي تلوار کوي پاك خدای تعالی ته ډیر ګران دی ، په یوبل حدیث شریف کي دي چي
« ترڅو چي مسلمانان په روژې ماتولو کي تلوار کوي ترهغه به ددین غلبه «بریا» وي » اوپه روژه ماتي کي له تلوار کولو څخه مقصد دانه دی چي تر لمر لوېدو له مخه دي روژه ماته کړله شي .
بلکه دد ي مقصد دادي چي هرکله دلمر لوېدل یقیني شو ، نوبیا دځه وهم اوشك په بنیاد باید ځنډونه شي ، دحضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دی چي حضور ﷺ وفرمایل « زما په بندګانو کي ماته ډیر ګران بنده هغه دي کوم چي په روژه ماتي کي تلوار کوي » نوله دې خاطره چي په روژه ماتي کي له تلوار کولو څخه غلط برداشت ونشي ، حضور ﷺ موږ ته دغه عام فهمه قاعده راښوولې ده چي « کله شپه راشي ، ورځ ولاړه شي ، لمر ولوېږي ، نو دروژه ماتي وخت راورسیدو» (ترمذي شریف)
دغه درې کلیمي دتاکید اووضاحت لپاره فرمایلي شوې دي ، ترڅو یوڅوك داګمان ونه کړي چي که لمر صرف دلوېدلو ترحده ورسېږي ، اویا بغیر له شپي بله توره شپه (لکه داوریځي په وجه چي پېښیږي) راشي ، نو روژه ماتیدای شي .

## په روژماتي کي دګړۍ یا جنتري کارول

پوښتنه : په داسي وخت کي دروژه ماتي حکم ورکول چي څونفره لالمر لوېدلي نه بولي څنګه دي ؟ اودهغو دواړو سم وخت کوم دي ؟

ځواب : دغه په تجربه اومشاهده پوري ترلي يوكار دی ، اوپه دې باندې پوهېدونكې هروخت موجود وي ، اوله سمې ګړی (ساعت) اودلمر لوېدلو اوختلو له معلوماتي پاڼې څخه هم په دې كې كومك ترلاسه كولای شي ، نو كله چې دوخت معلوماتي پاڼه دلمر ختلو اولوېدلو سره سمه وي ، اودهغو تجربه شوې وي ، نو له سمې ګړی څخه به دهغې سره سم دروژ ماتي اودماښام دلمانځه حكم وركول كيږي ، اودير وخت له مشاهدې او نورو نښو څخه معلومات كيږي . (فتاوى دارالعلوم ۶ج ۴۹۸ مخ).

په فتاوی رحيميه (۳ج ۱۰۸ مخ) كې داسې راغلی دی چې دماښام اذان ، لمونځ اوروژ ماتی له لمر لوېدو سره ترلي دي ، نو له ګړی اوجنتري (معلوماتي پاڼې) سره ، اووروستي دواړه يې دلمر لوېدلو تابع دي چې غلط هم پريوتای شي ، له هغو څخه ترڅه اندازې مرسته ترلاسه كولای شي خو هرڅه له دوي سره ترلي نشي بللای نوځكه چې هروخت تاسو پخپله ووينې چې لمرولوېدو ، اويا مو دبل چا په وينا اويانورو نښانو يقين شو چې لمر لوېدلی دی ، نوحتما روژه ماته كړي ، داسې وخت بيا داحتياط او دنورو په چرت وهلو سره ځنډول روانه دی ، اوترڅو پوري چې تاته دخپلې ليدنې ياله مخه دخبر يقين يا اعلان په بناء يقين حاصل شوی نه وي (بلكه شك وي ) نو ترهغه صرف په ګړی اوجنتري په باور سره لمونځ كول اوروژه ماتول سم كار نه دی ، نو كه هغه ځای چې لمر پكښې لوېږي سم نه ؤ چې چا ته

دامعلومات نشواى كېداى چي لمر اوس لوېدلى دى اوكنه ، نوبيا ځو دقيقې ځنډ كيدلاى شي. (فتاوى رحيميه ۳ج ۱۰۸ مخ)

## په جماعت كي دروژ ماتي اوپېشلمي كول

پوښتنه : په جماعت كي روژه ماتي كول ، اوپېشلمي كول څنګه دي ؟ كه چېري څوك په خپل كور كي روژه ماتوي اوبيا لمونځ ته جماعت ته ورځي ، نولمونځ پاته كيږي ، نو په داسي حالت كي هغه څه وكړي ؟

ځواب : ښه داده چي په دغسي حالت كي داعتكاف نيت وكړل شي ، په جماعت كي دپېشلمي او روژه ماتي كول صحيح دي خو تركومه حده چي امكان لري ، مسجد بايد چتل اوخراب نكړل شي.

(فتاوى محموديه ۱ج ۵۰۸ مخ)

## تر لمر لوېدلو په مخكى اذان باندي روژه ماتول

پوښتنه : اذان ويونكي نزدي اوه دقيقي مخته ترخپل وخت اذان وو ايه ، ماورباندي روژه ماته كړه ، نو آيا په دغه صورت كي زما هغه روژه سمه شوې ده او كنه ؟

ځواب : روژه دي ماتـه شوې ده ، كـه ستا غـالـب ګمـان داؤ چي دغـه اذان سـم وخـت دى ، نوبيـا دربانـدي صـرف قـضاء لازمـه ده ، او كـه دسموالي او غلطوالى په شك سربيره دي روژه ماته كړه ، نوبيا قضاء اوكفاره دواړه واجب دي.

## دزكات له پيسو څخه په جماعت كي روژه ماتي برابرول

پوښتنه : آيا دزكات روپۍ په جماعت ، روژه ماتي اوپېشلمي كي لګول كېداى شي ؟

ځواب : درمضان المبارك په روژه ماتي اويا دشپې په ډوډۍ کي زكات ورکول په داسي ډول روا دی ، چي روژه ماتونکی یا دشپې ډوډۍ شي ، خو که هغه غني (شتمن) ؤ نو بیا روانه دی .
(کفایت المفتي ۴ج ۴۵۸ مخ بحواله فتاوی هندیه ۱ج ۲۰۱ مخ)

## دروژ ماتي سم وخت

کله چي دلمر لوېدلو يقين ترلاسه شو ، نوبیا روژه ماتي ځنډول مکروه دی خو که دوریځي یابل څه په وجه دلمر په لوېدلو کي شك ؤ ، نوبیا دوه یا څلور دقیقي انتظار کول ښه کار دی ، بهر حال دري دقیقي احتیاط کول پکار دی ، ډیره ښه داده چي په خورماسره روژه ماته کړله شي ، خو که په کوم بل شي ماته کړله شي نو هم پکښي څۀ کراهت نشته . (جوهر الفقه ۱ج ۳۸۱ مخ).

## روژ ماتي باید څه شي وي ؟

په لونده خرما یا وچه خرما باندي روژه ماتول بهتر دي .
(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹۴ مخ بحواله مشکوة ۱ج ۱۷۵ مخ)

په تازه خرما باندي روژه ماتول مستحب دی ، که هغه نه وه بیا دي وچه خرما وي ، اوکه هغه هم نه وه بیا دي اوبه وي. (احسن الفتاوی ۴ج ۴۳۶ مخ)

## دحضور ﷺ روژ ماتی

حضرت انس ﷺ فرمایلي دي : چي نبي کریم ﷺ به دماښام ترلمانځه له مخه څو تازه خرماګاني خوړلې ، که هغه به نه وي بیا به یي څو وچي خرماوي خوړلې که هغه به هم نه وي ، نوبیا به یي دري ځله اوبه څښلې ، دترمذي شریف په یو حدیث شریف کي داهم راغلي دي چي

نبي كريم ﷺ به په درو خرماو يا كوم بل داسي څه په خوړلو سره دروژې ماتول خوښول چي په اوربه نه ؤ پوخ شوي.

تشريح : په خرماوو ياوبو سره دروژې ماتول حكمت ظاهرا داكېداى شي چي كله معده خالي وي ، اودخوراك غوښتنه زياته وي ، نو په دغسي حالت كي چي څه وخوړل شي ، نومعده يې په ښه ډول قبلولاى اوهضم كولاى شي ، نوځكه كه په دغه حالت كي شېرني معدي ته رسيږي نوبدن ورڅخه ډيره ګټه اخلي ځكه چي دشيرني داخاصيت دى چي دهغې په وجه په جسماني قواؤ كي قوت ژر پراخېږي په خاص ډول دليدلو قوې ته له خوږو څخه ډيره ګټه رسېږي ، اودخرما دنه وجود په صورت كي بيا اوبه دروژه ماتي لپاره فرمايلي شوي دي ځكه چي دادظاهري اوباطني لپاره يو نيك فال دى ، حضرت ابن مالك ؓ فرمايلى دي چي ښه داده چي دهغو دخوښولو علت پخپله په حضور باندي حواله كړل شي . (مظاهر حق ۴ج ۹۵ مخ)

## دروژ ماتي په وجه دجماعت ځنډېدل

پوښتنه : دروژ ماتي پروخت تول خلګ اول هغه څه چي جماعت ته يې دروژه ماتي لپاره راوړي وي خوري اوبيا لمونځ كوي يوڅوك دي چي داسي كول نه خوښوي او وايې چي ترلمانځه له مخه صرف خرماوي وخوري بس ، بيا لمونځ وكړي اوبيا وروستو هغه شيان وخوري ، ددي ناراضي په وجه هغه يواځي لمونځ كوي ، نو په دې اړوندشرعي حكم څۀ دي ؟

ځواب :دروژماتي په وجه دمانښام دلمانځه ځنډول روا دي ، په دې کي څه منعه نشته ، په ارامي سره دي روژه ماته کړي او اوبه دي وڅښي اوڅه چي دخوړلو لپاره موجود دي هغه دي وخوري بيا بايد لمونځ وکړي.

هغه څوك چي ددومره كم ځنډ په وجه ناراضه شوی دی اوځانته لمونځ کوي ، نو دادهغه خطايې ده ، هغه ته پکار ده چي دجماعت په لمانځه کي ګډون وكړي ، اودغه ځنډ چي دروژه مات په وجه مينځته راغلی دی دشريعت خلاف ونه بولي ځکه چي داپخپله دشريعت حکم دی.

(فتاوی دارالعلوم ۲ج ۴۵ مخ بحواله عالمګيرې ۱ج ۴۹ مخ).

کله چي په وخت کي ګنجائش وي ، اودڅه ضرورت په وجه څه ځنډ راځي ، نو په دې کي په قطعي ډول هيڅ تنګي نشته دمشکوة شريف دباب التعجيل الصلوة له حديث څخه څرګندېږي چي ترڅو پوري چي زيات شمېر ستوري په اسمان کي خپرېږي ترهغه پوري په ځنډولو کي هيڅ تنګي نشته. (ترتيب کوونکي محمدرفعت قاسمي).

## دغير مسلم په شي باندي روژه ماتول

پوښتنه : يوهندومشرك دی ، چي درمضان المبارك په هره مياشت کي شيدې ، اوداسي نورشيان مسلمانانو ته ورکوي ، ايا په دې سره روژه ماتول صحيح دی اوكنه ؟

ځواب : په دغه څه سره روژه ماتول صحيح دي اوپکښي څه منع نشته

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹۴ مخ).

په کفایت المفتي (۴ج ۲۳۴ مخ) کي راغلي دی چي : په هغه شي سره چي غیر مسلم چاته لېږلی وي قبلول او وربانديې روژه ماتول روا دي .

## داتې وهونکو ښځو په روژه ماتي سره روژه ماتول

پوښتنه : ایا که اتڼ او ناچ کونکې ښځه چاته روژه ماتی ولېږي ، نو روژه ماتول وربانديې روا دی اوکنه ؟

ځواب : داکار دتقوی خلاف دی (ګویا دفتوی له لاري دغه صورت دحرمت دعلم دنه موجودیت په وجه روا دی ) یعني دمال دحراموالي دعلم دنه موجودیت په صورت کي روا دی. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۹۴ مخ)

## دغیر مسلم په اوبو روژه ماتول

پوښتنه : یو روژه لرونکي له هندو څخه اوبه راواخستلې او روژه یې وربانديې ماته کړه ، یوچا وویل چي روژه دي ختمه شوه ځکه چي هندو خو کافر دي ، اوهغه اوبه حرامي وي ، نو شرعي حکم څه دی ؟

ځواب : په خپل وخت بانديې دهندو په اوبو روژه ماتول روا دي ، ځوك چي په دې خبره جګړه کوي هغه دده دناعلمي اوجاهلیت علامه ده . (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۴۵۶ مخ)

## په مالګه سره دروژې ماتول

په خرماو سره روژه ماتول ډیره ښهٔ ده ، که هغه نه وي ، نوبیا په اوبوسره باید روژه ماته کړله شي ، بعض خلګ په مالګه روژه ماتول ثواب بولي ، نوځکه وربانديې روژه ماتوي ، دایوه غلطه عقیده ده .

(بهشتی زیور ۳حصه ۱۵ مخ بحواله ترمذي شریف)

## په دوا سره روژه ماتول

پوښتنه: که يو څوك ناروغ ؤ، نو هغه درمضان المبارك روژه په دواء سره ماتولای شي او که نه؟
ځواب: بلي: هغه کولاي شي په درملو سره روژه ماته کړي، په دي کي هيڅ منعه نشته. (فتاوى دار العلوم ج٦ مخ ٤٩٥)

## په چلم څکولو سره روژه ماتول

پوښتنه: که چا روژه ونيوله، بيايي دروژه ماتي پر وخت تر هر څه لومړی چلم وڅکاوه او بيهوښه شو، نو روژه يې سمه شوې ده او که نه؟
ځواب: ((دهغه روژه سمه شوې ده)) په حاشيه کي راغلي دي چي دهغه روژه ځکه سمه شوې ده چي (روژه) له صبح صادق څخه بيا تر لمر لوېدو پوري له خوراك څښاك او جماع څخه دليري اوسېدلو نوم دی، نو دغه روژتي په هغه باندي عمل کړی دی.
(فتاوى دار العلوم ج٦ مخ٤٩٨ بحواله رد المحتار ج٢ مخ١١٠)

## دروژ ماتي دعاء

په يو حديث شريف کي دي چي ((دهر روژه ماتي پر وخت روژه لرونکي ته ديوې داسي دعا اجازه وي، دکومي چي دقبلېدلو خاصه وعده ده. (بهشتي زيور ج٣ مخ٧١)
په يو حديث شريف کي راغلي دي چي کله تاسو ته په داسي حال کي چي تاسو روژه لرونکی ياست خوراك په مخ کي کېښودل شي، نو تاسو ته پکار دی چي تر روژه ماتي له مخه دغه دعا ولولئ:

«بِسْمِ اللهِ ، وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ اَللّٰهُمَّ لَكَ صُمْتُ وَعَلٰى رِزْقِكَ اَفْطَرْتُ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ سُبْحٰنَكَ وَبِحَمْدِكَ تَقَبَّلْ مِنِّيْ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْم»

## مؤذن لومړی روژه ماته کړي، او که اذا ن وکړي؟

پوښتنه: په رمضان المبارك کي له روژې ماتولو څومره وخت وروستو باید اذان وشي؟

ځواب: کله چي لمر ولویږي نو روژه دي ماته کړي او بیا دي اذان ووایي. دروژه ماتي په وجه په لمانځه کي دپنځو یا اوو دقیقو ځنډ کولو ګنجائش شته دی .(فتاوی رحیمیه ج۲ مخ۳۸)

## روژ ماتی او دماښام دلمانځه وخت

پوښتنه: ایا دروژه ماتي او ماښام لمانځه وخت دلمر له لوېدلووروسته سمدستي دی ، اوکه څه وخت وروستو؟ که غر په نژدې فاصله کي پروت وي اولمر تر غره پټ شي ، نو دروژه ماتي اولمانځه وخت کېږي او که نه؟

ځواب: کله چي لمر ولوېدو بس هغه دروژه ماتي او لمانځه وخت دی ، دځنډ کولو ضرورت نشته که څه هم لوېدیځ طرفته غر پروت وي ، ځکه چي دغروب (لمر لوېدو) معني دانه ده چي په ټوله نړۍ کي به یوځای هم لمر نه تر سترګو کېږي. دارنګه کېدل خو امکان نه لري، یوځای لمر لوېږي او بل ځای راخېږي ، بلکه دغروب (لمر لوېدلو)معنيٰ داده چي زموږ دلمر لوېدلو په ځای کي لمر ولوېږي، او دختیځ له خوا تاریکي راښکاره شي. خو که یو څوك په غره ولاړ ؤ او

لمر يي په سترګو ليدلای شوای، نو هغه ته روژه ماتول روانه دی ، ځکه چي دهغه لمر لانه دی لوېدلی. (امداد الفتاوی ج۱مخ ۱۷۰ بحواله شامي ج۲مخ۸۰)
په مظاهر حق جديد نومي کتاب ج۲ قسط ۴ کي راغلي دي چي په ښاروکي دلمر لوېدلو علامه داده چي دختيځ له لوري توره شپه دومره راپورته شي له کومه ځايه چي صبح صادق پيل شوی وي.

## درويشتم باب

## دصدقه فطر (سرسايې) څو مسئلې

داختر ورځ دډېره مبارکه او دپاك خدای ﷻ دمېلمستيا ورځ ده . په دغه ورځ مو ږ ټول دپاك خدای ﷻ مېلمانه يو. په دې وجه په دغه ورځ روژه نيول حرام شوي دي ځکه چي کله موږ ته پاك خدای ﷻ په مېلمستيا کي دخوړلو او څښلو حکم کړی دی ، نو مو ږ ته هيڅکله نه دي پکار چي ورنه مخ واړو، په دغه ورځ روژه نيول داسي دي لکه دپاك خدای ﷻ مهماني (بلنه) ردکول دا زموږ مسلمانانو لپاره يوه لويه دخوشحالي ورځ ده ، زموږ په ښه ورځ کي بايد کېلونه ،ننداري او سرودونه نه وي، چاته تکليف ورکول او دهغو تنګول بايد نه وي،بلکه کوم څه چي راته پاك خدای ﷻ راکړي دي هغه له نورو محتاجانو سره شريك کړو.
دولت مند چي کله خپل ګلان ماشومان په ښائسته ښائسته جامو کي خوشحالي کونکي ويني ، نو دغريب مړاوی انځور او دهغه دماشومانو له غم څخه ډکي سترګی نشي ليدلای . مسلمان دولت لرونکي تر هغه وخته دخپل کور خوشبويه او خوند وروخورا کوته

لاس نه وروړي ،تر څو دغريب له کوره دځه پخولو دوګى پورته شوى
ونهويني ، ګرانو زما به څه عيد وي! چې زموږ څنګ لورى مسکين
نن ورځ هم وږى پاته وي . ګرانو! په مابه خپله ښائسته ښځه څرنګه
ګرانه وي په داسې حال کي چي زموږ دنژدې څنګ لوري دمېرمنې
جامې څو څو ځايه بيا پيوند او ګندل شوې دي ، که خدانخواسته
موږ دومره غيرتمند نه يو ، نو مسلمان ولي بايد عزتمند نه وي؟
ځکه چي زموږ عزتمند خداى ﷻ دانه برداشت کوى ، چي زما يو
محتاج بنده دخپلو زړو جامو په وجه شرمېږي او دعيد په لمانځه کي
شرکت نه کوي ، او دهغه واړه ماشومان چي کله دهغو نورو
ماشومانو چي له دوى سره به يې لوبي کولې ښکلې ، ښکلى جامې
او له هغو سره دروپو نوي ، نوي لوبونهويني ، نو په ژړا ژړا راځي او
خپلې مورته وايي چي:
موري! موږ ته هم داسې شيان واخله ، نو دهغو مور چي له بې قدرتي
څخه يې هيڅ ته لاس ته نه رسېږي دوى په غېږه کي رانيسي او دهغو
اوښکې پاکوي او ورته وايي: بچيانو! ولي نه: تاسوته به هم دغه
شيان دراخلم ، نو له دې وينا سره دزيات غم په وجه دهغې له خولې
څخه بې اختياره چغه وزي او دهغې په زړه باندي دفکر او غم او ريځ
خپرېږي ، نو دغه حال پاك خداى ﷻ نشي ليدلاى (يعني ليدل يې نه
غواړي) او کوم غيرتمن هغه ليدلاى شي؟......... ، نو ځکه پاك
خداى ﷻ په خپلو خوشحاله بندګانو باندى دالازمه کړېده چي کله چي
دوى زما دغريبو بندګانو نارينه او ښځينه ؤ اوښکى پاکي نکړي ،

ترڅو چي دوی دهغو وجود پټ نکړي، تر څو چي دوی دهغوی نغری ګرم(تود) نکړي او ترڅو چي دوی دهغوی ماشومان په خنداونه ويني، نو تر هغو دي په خپله عيد نه جوړوي . ترڅو چي دهغو دزړه تکليف خلاصه نکړي تر هغودي زما مخ ته نه راځي ، تر څو چي دمحتاج دمېرمني عيد په خوشحالي سره جوړ نکړي تر هغو دي دخپلي ښځي پای زېبونه اتکړه او دهغې هار دي طوق وبولي . له هغو سره دهمدر دي دکم ترکمه ضروري برخي نوم صدقة الفطر (سرسايه) ده.

سرسايه دمسلمانانو ترمېنځ دهمدردي هغه تر ټولو کمه برخه ده چي که دغه هم اداء نه شي، نو په مالدارانو اوشتمنو دپاك خدایﷻ قهر نازلېږي ، دهغو دګټو برکت له مېنځه ځي ، قهّار خدایﷻ دهغې دنه اداء په وجه دهغو په مخکي دومره پرېشانۍ او تکليفونه اچوي چي ترسرسايې څو چنده زياتي پيسې پکي بربادېږي، او ديو غريب ديوې ورځي په ژړا دپروانه کولو په سزا کي غيور خدايﷻ دغه بې غيرته شتمن څوڅو کاله اوساعته سر تور او خوار وي، او کله چي هغه په خوشحاليو او نورو کي نور نه ورګډوي نو ليدونکی او اورېدونکی خدایﷻ هغه په غمونو تکليفونو اوښکو او دردونو کي نورو ته ورګډوی (يعني دی هم دهغو په حال کوي)او خپل ټول بندګان سره يو رنګه کوي.

(رمضان کيا هے مخ ۱۷۵)

## دصدقه فطر (سرسایې) شرطونه

سرسایه واجبه ده ، فرض نه ده . دسرسایې دواجبېدلو لپاره درې شرطونه دي . (۱) ازادي (۲) مسلماني (۳)دداسي نصاب مالك گرزېدل چي تر اصلي ضرورت زیات وي، او له قرضوڅخه یا خو بالکل او یا ترانداز ې دیو نصاب پوري ساتلی وي په دغه مال باندي نه دکال تېرېدل شرط دي او نه دمال تجارتي کېدل شرط دي ، او نه دمال دخاوند بلوغ او عقل ورته شرط دي، تر دې چي په نابالغ او په لیوني هم سرسایه ورکول واجب دی ، دهغو ولیان (سر پرستان) باید دهغو سرسایه اداء کړي. خو که ولي (سرپرست) اداء نکړه او هغه پخپله په دغه وخت کي شتمن ؤ ، نو بیا دې له بالغیدلو اویا له لېونتوب څخه روغېدلو وروستو دتېري زماني سرسایه اداء کړي.

دسرسایې حکم حضور اقدس ﷺ په هغه کال باندي ورکړی دی چي روژه فرض شوې وه.

دسرسایې فائده دامعلومېږي چي دادخوشحالي ورځ ده ، او په دغه ورځ داسلام شان او شو کت (دبدبه)په ډېرښت او راټولتیا سره لیدل کېږي او دصدقې په ورکولو سره دغه مقصد نور هم پوره کېږي. برسیره په دغه په سرسایه سره دروژې پوره والی کېږي، دصدقې په ورکول سره روژه مقبوله گرزي. او په دې کي دالله ﷻ دعظیم (لوی) احسان (چي موږ ته یې دروژې نیولو توفیق راکړ) او نورو شکریه اداء کول هم دي . (علم الفقه ج٤ مخ ٥٠-٥١)

سرسایه ورکول په هغه چا واجب دی چي دنصاب خاوند وي ، یعني یا (۵۲) تولې سپین زر اویا (۷,۵) اوونیم تولې سره زر ولري .
(فتاوی دار العلوم ج٦ مخ ٣٦٦ درمختار ج٣ مخ٩٩)

## ضرورات اصلیه کوم دي؟

دچاچي لوی قیمت لرونکي کور وي ، که خرڅ کړل شي ، نو(۱۰۰۰) یا پنځه سوه روپۍ قیمت کېدای شي او ورسره دخرڅولو او اغوستلو قیمتی کفرې وې مګر په هغو کی د سچّه سپین یا سره زر ګډنه وي ، او دهغه دخدمت لپاره یې دوه یا څلور خدمتګاران هم شته ، دزرو (۱۰۰۰) یا پنځو سو(۵۰۰) ضروري سامان‌هم شته مګر کېنه نشته ، او هغه سامان ټول کاروي ، او یا یو څه سامان تر ضرورت زیات هم موجود دی او څه دزرو ګېنې او نور هم شته ، خو په دومره اندازه نه ، چي زکات ورباندي واجبېږي ، نو په دغو ټولو صورتو کي سرسایه واجب نه ده. (نور الایضاح مخ۱٦۱)

همدارنګه له یو چا سره تر ضروري سامان زیات نور څه‌هم ؤ ، مګر هغه قرض دارؤ ، نو هغه دي دقرضو اندازه ولګوي چي هغه څومره دي ، که هغه سامان په دومره روپو خرڅېدو چي په څومره چي زکات واجبېدو ، نوبیا ورباندي سرسایه هم واجبه ده ، او که تر دې کم ؤ نو بیا واجبه نه ده . (بهشتی زیور حصه ٣ مخ ٣٤ بحواله هدایه ج١ مخ ١٨٥)

## خالي مکان (ځای)په ضرورت اصلیه کي داخل دی او که نه؟

یو څوك دی چي دوه کور ونه لري، په یو کي پخپله اوسي، او هغه بل یا خلاص دی او یایې په کرایه ورکړی دی ، نو دغه دوهم مکان له

ضرورت څخه زيات دی ، که ددغه کور قيمت دومره ؤ چي زکات وربانديي واجبېدو ، نو بيا په هغه مالك باندي سرسايه هم واجب ده . او هغه ته دزکات روپی ورکول هم روا نه دي ، خو که دمالك ګذاره په دغه مکان وه يعني دروپو ګټلو يې بله لاره نه لرله، نو بيا هغه مکان له ضرورت اصليه څخه ګڼل کېږي ، او په خاوند يې سرسايه واجب نه ده . او دزکات روپی هم ورته ورکول کېدای شي.

لنډه داده چي کوم چاته چي زکات او سرسايه ورکول کېدای شي ، په هغه باندي سرسايه واجب نه ده .او چاته چي دزکات او سرسايې روپی نشي ورکول کېدای په هغه باندي سرسايه واجب ده .

(بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۳۵ بحواله فتاوی خانيه ج۱ مخ ۲۲٦)

په چاچي زکات فرض دی په هغه باندي سرسايه هم واجب ده ، مګر فرق پکي داده چي په زکات کي خو دسپينو يا سرو زرو يا دتجارت دمال لرل ضروري دی ، او دصدقه فطر (سرسايې) واجب کېدلو لپاره صرف دغه دري شيان نه دي بلکه دهغې په نصاب کي هر قسم شته شمېرل کېږي ، خو داشرط په دواړو نصابو کي شته چي هغه مال چي زکات يا سرسايه ورڅخه ورکوله کېږي هغه به دورځني ژوند له اړتيا څخه زيات وي او قرض به هم وربانديي نه وي .دېلګي په ډول که له يو چاسره دورځني ژوند لپاره داغوستلو زياتي کپړې وي يا تر ضرورت زيات سامان لکه پيتل ،استيل ، ګچين او داسي نور لوښي وي ، يا خالي مکان وي او يا نور تر ورځني ژوند زيات سامان وي ، نوکه دهغو ټولو قيمت سره راټول کړل شي او حد دنصاب ته ور

سېږي او يا ورنه زيات شي ، نو په هغه سره زكات نه واجبېږي خو سرسايه ورباندي واجبېږي . همدارنګه دسرسايې په نصاب باندي دكال تېريدل هم ضروري نه دی كه په هغې ورځ هم ددومره شتو خاوند شو چي سرسايه يې لازموله ، نو سرسايه اداء كول واجب دی.

(رمضان کیاهـــ مخ ۱۷۷)

## څوک چي دنصاب خاوند نه وي دهغه حكم

په حديث شريف كي راغلي دي چي ((غني (شتمن)دي هم سرسايه اداء كړي او فقير دي هم سرسايه وركړي)) ددوي دوو په اړوند فرمايل شوی دي چي ((الله ﷻ ددغي سرسايې وركولو په وجه شتمن پاك ګرزوي، او هغه چاته چي خاوند دنصاب نه وي (فقير) ته تر هغه څه زيات وركوي كوم چي هغه په سرسايه كي وركړي دي . كه څه هم دغه زېرى خو دشتمن لپاره هم دي چي پاك خدای ﷻ دسرسايې وركولو په وجه دهغه په شتو كي څوچنده زيات بركت اچوي، خو له فقير سره ځكه خاص كړل شوی دی چي په دې سره دهغه همت زيات شي، او هغه له صدقې وركولو څخه شاته نشي . (مظاهر حق جدید قسط ۳ ج ۲ مخ ۵۸)

## سرسايه څه وخت واجبېږي

سرسايه دوړوكي عيد دسهار راختلو سره سمه واجبېږي ، نوځكه په هغه چاچي تر سهار كېدلو له مخه مړ شي او يافقير شي، نو په هغه باندي سرسايه واجبه نه ده . همدارنګه كه يو چا تر سهار كېدلو وروستو اسلام راوړ او يا دمال څښتن شو.يا كوچني هلك يا انجلۍ

تر سهار کېدلو له مخه پیدا شو او یا چا اسلام راوړ او یا دمال خاوند شو، نو په دغو ټولو باندې سرسایه واجب ده . (علم الفقه برخه ٤ مخ٥١)
که څوك دعید دورځې ترسهار کېدلو له مخه مړ شو، نو سرسایه وریاندې واجب نه ده، او دهغه له ماله به هم نه اداء کېږي.
. (بهشتی زیور حصه ۳ مخ ۳۵ بحواله عالمگیری ج۱ مخ۱۹۶)

## تر رمضان المبارک له مخه سرسایه ورکول

پوښتنه: دصدقة الفطر (سرسایې)ورکولو وخت کوم دی؟ تر رمضان المبارك له مخه یعني دشعبان (براة)او یا رجب (بزرګې) په میاشت کې اداء کول یې صحیح دي او که نه؟
ځواب : دایوه اختلافي مــــسئله ده ، تر رمضان له مخه دسرسایې ورکولو قول هم شته ، خوعمل وریاندې کول داحتیاط په خلاف دي . درمضان په میاشت کې هم دسرسایې په ورکولو کې اختلاف شته ، خو قوي داده چې ورکول یې صحیح ، اوسرسایه یې اداء کېږي .
(فتاوی رحیمیه ج٥ مخ ١٧٦ بحواله بحر الدائق ج٢ مخ٢٥٥)
په فتاوی دارالعلوم ج٦ مخ ۳۰۵ کې بیا داسې راغلي دي چې درمضان المبارك په هره لسېزه کې دسرسایې ورکول صحیح دي .

## دچا ، او چا له طرفه سرسایه ورکول واجب دی؟

دخپل ځان او خپل نابالغ او لاد له طرفه صدقة الفطر (سرسایه) اداء کول واجب دی ، همدارنګه دبالغ او لاد سرسایه اداء کول په دې شرط واجب دی چې هغه به دنصاب خاوند نه وي او که نصاب

خاوندۀ بیا یې سرسایه اداء کول واجب نه دی . که دنابالغ اولاد مال ۇ بیا به سرسایه دهغه له ماله څخه اداء کوئ، او که یې مال نه وو، بیا به یې له خپله ماله څخه .همدارنګه دخدمتګارانو ، مینځي، او غلام له طرفه هم سرسایه اداء کول واجب دی که څه هم هغه کافران وي .خوکه بالغ شتمن ۇ مګر لیونی ۇ، نوبیا هم دهغه له مال څخه دهغه سرسایه اداء کول واجب دی.

هغه مینځي یا غلامان چې دخدمت لپاره نه ، بلکه دتجارت لپاره وي ، دهغو سرسایه اداء کول واجب نه دی .

که پلار مړ شو، نو بیا نیکه دپلار په حکم کې دی ، یعني که لمسی مالدار ۇ نو دهغه له ماله څخه، او که مالدار نه ، بیا دهغه له خپله ماله سرسایه ورکول واجب دي . (علم الفقه ج۳مخ۵۲)

په فتاوی دار العلوم ج۶ مخ ۳۲۴ کې دعالمګیري په حواله داسې لیکل شوي دي (ښځه چې دنصاب خاونده وي، نوسرسایه وربانديي واجب ده ، که دهغې خاوند دهغې له طرفه سرسایه اداء کړي ، نو اداء کیږي. په پلار یې سرسایه اداء کول واجب نه دي)

**په سرسایه کې دا جازې ضرورت شته او که نه؟**

پوښتنه: څرنګه چې دبل چا زکات بغیر دهغه له اجازې نه اداء کیږي ، نو ایا سرسایه هم همداسې ده ؟

ځواب : بلې: په سرسایه کې داجازې اخستلو ضرورت شته ، مګر څرنګه چې دسرسایې اندازه کمه او معلومه ده ، نو ځکه دمېرمنې او اولاد (چې دسړي تروکالت لاندې دي) سرسایه سړی اداء کوي، او

دعادت له مخي دهغو اجازه وي، نو استحسانا داسي کول روا دی .
خو زکات چي اندازه يې نامعلومه او زياته وي او بغير له وينا څخه
يې اداء کولو عادت نشته، نو ځکه يې اجازه او وکالت ضروری دی
. (فتاوی رحيميه ج۵ مخ ۱۷۳ بحواله شامي ج۱ مخ ۱۰۳)

## چاچي روژه نه وي نيولې دهغه دسرسايې حکم

که چا په څه وجه درمضان المبارك روژه ونه نيوله ، نو په هغه باندي
هم سرسايه واجب ده ، دروژه نيوونکي اونه نيونکي هيڅ فرق پکي
نشته. (بهشتی زيور حصه ۳ مخ ۳۵ بحواله عالمگيري ج۱ مخ ۱۹۳ وفتاوی رحيميه ج۳ مخ ۱۱٤)

## دورکړ شوې انجلۍ سرسايه په چاواجب ده ؟

پوښتنه : يوه انجلۍ چاته کوزده شوې ده خو هغه دځپل پلار په کور کي ده
، اونابالغه ده ، ايا دهغې سرسايه په مور اوپلار واجب ده اوکه په
خسرګنۍ؟

ځواب :که هغه انجلۍ شتمنه وي ، نو له خپله ماله سرسايه اداء کول
ورباندي واجب دی ، بالغه وي اوکه نابالغه ، اوکه شتمنه نه وه خوبالغه وه
، بيا په هيڅ چا نشته ، اوکه نابالغه هم وه اوڅه يي هم نه لرل او واده شوې
هم نه وه ، نوبيايې سرسايه دپلار په غاړه ده ، اوکه واده شوې وه ،نوبيا
دپلار په ذمه نه ده . (امداد الفتاوی جديد ۲ج ۸۰ مخ).

## که دمال له تقسيم وروستو دنصاب خاوند نشو ، نو سرسايه ورباندي واجب ده ؟

پوښتنه : دځلورو ورونو ګډ مال دی چي که ورباندي وويشل شي ،
نوديوه مال هم حد دنصاب ته رسېدای نشي ، نوآيا سرسايه اوقرباني
ورباندې واجب ده اوکنه ؟

جواب : په داسي صورت کي چي يوه ورور ته هم دنصاب په اندازه څه ونه رسېږي ، نو په يوه هم نه سرسايه شته اونه قرباني .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۰۸ بحواله ردالمحتار ۳ج ۹۹مخ)

## کوم زلمی چي خپله ګټه پلار ته ورکوي دهغه دسرسايې حکم

پوښتنه: ديو چا دوه زامن دی، هر څه چي دوی ګټي هغه خپل پلار ته ورکوي، له هلکوانو سره هيڅ هم نشته ، نو په دوی باندي سرسايه، قرباني او يا زکات واجب دی او که نه؟

ځواب :په هغو باندي زکات، سرسايه او قرباني واجب نه دي .

(فتاوی دارالعلوم ديوبند ج٤ مخ٣١١ بحواله رد المحتار ج٢مخ٩٩)

## ايا دنصاب خاوند نابالغ به وروستو له بلوغه سرسايه اداء کوي؟

پوښتنه: که ماشوم دنصاب خاوند ؤ او دهغه سر پرست دهغه له طرفه سرسايه اداء نکړه، نو په هغه باندي تر بلوغ وروستو دهغې اداء کول واجب دي او کنه؟

ځواب : بلي: هغه به له بلوغ وروستو هغه سرسايه اداء کوي ، خو که ماشو م دنصاب خاوند نه ؤ بلکه پلاريې دنصاب خاوندؤ خو دهغه سرسايه يې اداء نه کړه ، نو بيا په هغه باندي وروستو له بلوغه اداء لازمه نه ده . (امداد الفتاوی ج۲ مخ۷۸)

## که دټولو دسرسايې اداء کولو قدرت نه ؤ

که له يو چا سره دومره غله وه چي دخو نفرو سرسايه يې اداء کولای شوای او دنورو پاته کېږي ، نو هغه بايد دهغوصدقه ورکړي چي په نفقه کي يې زيات تاکيد وي . حضور ﷺ به داولاد نفقه تر ښځو، او

دښځو نفقه تر خادمانو مخکې کوله. په مسلمان باندي دهغه ښځه ، دهغه دمېرمني، ماشومانو ، غلامانو او هغو خپلوانو سرسايه واجب ده دکومو چي خرڅه په هغه باندي ده . لکه پلار ، نيکه ،مور ، انا او داسي نور... (احياء العلوم ج١ قسط٥ مخ ٥٢٧)

## سرسايه دعيدپه تېرېدولو سره نه معاف کېږي

که يو چا دوړوکي عيد په ورځ سرسايه ورنکړه ، نو ورته معاف شوې نه ده ، بلکه ورځ بايد هغه ورکړي . (بهشتی زيور ٣حصه ٣٥ بحواله هدايه ١ج ١٩١ مخ)

## دسرسايې اندازه

په صدقة الفطر (سرسايه ) کي بايد غنم يا دغنمو اوړه دغنمو له سويق څخه پاوکم دوه کيلو ورکړل شي ، اوداحتياط په وجه خوښه داده چي پوره دوه کيلو يا تردې زيات ورکړل شي ، ځکه چي په زيادت کي هيڅ منعه نشته ، بلکه بهتر دی اوکه يې وربشي اويا دهغو اوړه ورکول ، بيا به دهغو دوه چنده ورکوي ، اوکه يې بيا نور خوراکي شيان لکه چنې ، جوار ، وريجي اوداسي نور ورکول ، نوبيا بايد دومره څه ورکړی چي قيمت يې له پاوکم دوه کيلو سره سم وي .

(بهشتی زيور ٣ حصه ٣٥ مخ بحواله عالمگيري ٣ج ١٩٣ مخ)

## ايا په وريجو ورکولو سره سرسايه اداء کيږي ؟

پوښتنه : په بنګال اوبعض نورو علاقو کي دهرچا غذا وريجي دي په دغه صورت کي دهغو په پاوکم دوه کيلو وريجو ورکولو سره سرسايه اداء کيږي اوکنه ؟

جواب : په درمختار کې راغلي دي چې که څوك وغواړي چې په سرسایه کې وریجې ورکړي ، نو دوریجو لپاره کوم وزن معتبر نه دی ، بلکه دومره وریجې به ورکوي چې په قیمت کې له پاوکم دوه کیلو غنمو سره سم وي ، که یوڅا پوره دوه کیلو وریجې ورکړې خو قیمت یې ترپاوکم دوه کیلو غنمو کم وي ، نوسرسایه یې نه ده اداء شوې (امداد الفتاوی ۱ج ۱۵۶ مخ

سرسایه که غنم ؤ ، یا دغنمو اوړه نو پاوکم دوه کیلو باید ورکړي اویا دي دهغو قیمت ورکړي ، اوکه غنم نه ؤ اوپه بدله کې یې نور څه لکه وریجې اونور ورکول ، نو دومره څه باید ورکړی چې ددوو کیلو غنمو له قیمت سره سم وي ، اوکه اوربشې یې ورکولې نوبیا باید دغنمو دوچند ورکړي ، په کفایت المفتي (۴ج ۲۹۳ مخ) کې ، اوفتاوی هندیه (۱ج ۱۹۲ مخ ) کې راغلي دي ، چې غیر منصوص شیانو کې حکم دادی چې دصاع یا نصف صاع (پاوکم دوه کیلو) غنمو په قیمت چې څومره وریجې کیږي ، نو هغومره وریجې دي ورکړي.

**په سرسایه کې به واړه شوي اوړه ورکوي اوکه دهغو قیمت ؟**

پوښتنه : دمور شس په جزیره کې خلک دغنمو ډوډۍ نه خوري ، بلکه له بهر څخه ورته تیار واړه شوي راځي دهغه ډوډۍ خوري ، اودپنځه سوه ګرامه قیمت نزدې پنځوس روپۍ دی ، اودچاچې خاص ضرورت وي هغه بیا غنم اخلي اوبیا یې خوري نو پوښتنه داده

چې مونږ دواړه شوو اوړو دقېمت په اعتبار سرسايه اداء کړو اوکه دغنمو دقېمت په اعتبار ؟

جواب : که دغه واړه شوي اوړه دخالصو غنمو وي ، اوڅه بل شي ورسره ګډ شوی نه وي ، نوکه له هغوڅخه پاوکم دوه کيلو ورکړي ، نو سرسايه اداء شوې ده ، اوکه دهغو قېمت ورکړي ، نو هم سرسايه اداء شوې ده ، اوکه له هغو وړو کړل شوو اوړو سره نورڅه ګډ کړل شوي ؤ ، نو بيا که پاوکم دوه کيلو اوړه ورکړئ هم ، اوکه يې قېمت ورکړئ هم سرسايه نه ده اداء شوې دخالصو غنمو له قېمت څخه دي سرسايه اداء کړي . (فتاوی رحيميه ۵ج ۱۷۷ مخ بحواله هدايه ۱ج ۱۹۰ مخ)

**څوک چې مختلفی غلې کاروي هغه په سرسايه کې څه ورکړي ؟**

سرسايه به له هغې غلې څخه اداء کوي ، کوم چې هغه پخپله کاروي ، که يوڅوك غنم کاروي ، نودهغه لپاره په سرسايه کې وربشې ورکول صحيح نه دي ، اوکه مختلفې غلې يې استعمالولې ، نوبيا دي له هغې څخه صدقه ورکړي چې ترټولو ښه وي ، اوکه معمولې غله ورکړي هم سرسايه وربانديې اداء کيږي . (احياء العلوم ۱ج ۴ قسط ۵۲۶ مخ)

**ايا په سرسايه کې دحکومتي وړيا غنمو يا اوړو دقېمت اعتبار شته ؟**

په سرسايه کې خواصل دادی چې دغنمو او نوروغله ورکړل شي ، هر قسم غله چې وي اعلی وي که اوسط وي که ادنیٰ سرسايه وربانديې اداء کيږي ، خوکه دغلې قېمت ورکوي نوبايد دهغې هغه قېمت ورکړي کوم چې په بازار کې دی ، داضروري نه ده چې هغه به دډيرو ښو غنمو قېمت وي ، ددريواړه ډولونو دغنمو دقېمت په ورکولو

سره سرسایه اداء کیږي خو قیمت به یې بازاري وي ، دراسن دغنمو قیمت داعتبار وړنه دی ، دمختاج لاس ته باید دومره اندازه روپۍ ورسولي شي چي که هغه ورباندي غنم اخستل وغواړي ، نو په هغو روپو باندي دبازار په نرخ پاوکم دوه کیلو غنم اخستل کیدای شي ، که دهغو غنمو دقیمت سره سمي روپۍ ورکړلي شي چي دحکومت له خوا خلګو ته وړیا ورکول کیږي ، نو هغه بیا نشي کولاي چي په هغو روپو سره بازاري غنم واخلي ځکه بازاري قیمت لوړ وي اودراسن دغنمو دترلاسه کولو لپاره کارډ ضروري دی اوهغه کارډ له هرفقیر سره نه وي ، نوځکه یې ددغو غنمو دحساب په ورته لګولو سره اداء کول اودهغو دحساب سره سم قیمت اداء کول سم نه دی.

(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۷۲ مخ)

که داوړو قیمت تر غنمو کم ؤ ، نو داوړو په ځای به په پاوکم دوه کیلو غنمو سره سرسایه اداء کوي ، اویا به دومره اندازه اوړه ورکوي چي قیمت یې ترپاوکم دوه کیلو غنمو ورسیږي . (احسن الفتاوی ۴ج ۴۸۵ مخ).

## په سرسایه کي دکوم ځای قیمت معتبر دی

پوښتنه : دلته دغنمو پیدوار هم نشته ، اودخرڅ لپاره هم نشته خو په بعض کوروکي اوړه کم اومیده (چې دغنمو صرف مغرو اوړه دی) زیات دي اود میدی قیمت تر اوړو ډیر زیات دی ، نو په دغه صورت کي د میدې په حساب سرسایه ورکړي ، اوکه دهندوستان دغنمو دقیمت په معلومولو سره ؟

ځواب :غنم وي اوکه اوړه وي دهریو په ورکولو سره سرسایه اداء کیږي ترغنمو داوړو ورکول بهتر دي اوتر اوړو بیا دقیمت ورکول بهتر دي ، په نزدې ځای کې چې دغنمو کوم نرخ دی ، بس له هغه حسابه څخه به سرسایه ورکوله کیږي .
نوداچې ستاسو په ځای کې ډیر واره شوي اوړه زیات کاریږي ، نوبیا باید پخپله هغه اویا دهغو قیمت ورکړئ ، که څه هم تر غنمویې قیمت لوړ وي. (فتاوی محمودیه ۷ج ۲۷۱ مخ)

## په سرسایه کې دکلي یا دښار دقیمت اعتبار

که په یوځای کې غنم نه پیداکیږي ، او اوړه په لوړ قیمت کې وي ، اوپه ښار کې بیا دغنمو نرخ ټیټ وي ، نودشهر دغنمو په قیمت سرسایه ورکول څنګه دی ؟
ځواب : سرسایه باید په خپل کلي کې دغنمو دقیمت سره سمه اداء شي ، که هلته غنم نه پیداکیږي بیا دي اوړوته حساب وکړي ، اویادي دجوارو یاخرما ؤ دیوصاع قیمت حساب کړي ، لنډه داچې کوم شي (چې په حدیث شریف کې ذکر شوی دي لکه غنم ، خرماوي ، یوډول غټ کشمیش ، دکومو چې یوصاع دی ) هلته پیداکیږي دهغه قیمت دي حساب کړل شي. (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۲۲ مخ بحواله ردالمحتار ۱ج ۱۰۳ مخ).

## ترټولو غوره سرسایه

که دغنمو یا وربشو قیمت ورکړل شي ، نو داترټولو بهتره سرسایه ده (عالمګیري ۱ج ۱۹۴مخ)

که دارزاني زمانه وه ، نو نغدي روپۍ ورکول ښه دی ، اوکه قیمتو نه لوړؤ بیا دخوراکي شیانو ورکول بهتر دي اودعلم الفقه نومي کتاب په حاشیه کي راغلي دي چي زما په نزد امیرانو ته دامناسب ده چي په دغو کي دترټولو ګران شي قیمت ورکړي ځکه چي په حدیث شریف کي راغلی دي «اذاوسع الله فوسعوا» ......... کله چي پاك خدای تعالی تاسو ته زیات څه درکړي ، نوتاسو هم زیاته ورکړه وکړي . (علم الفقه ۴ج ۵۳ مخ).

## دبې وطنو دسرسايې حساب

پوښتنه : په بهرني هیواد کي اوسېدونکي خپلو کوروالو یا خپلوانو ته ولیکل چي زما له طرفه دومره سرسایه اداء کړي ، نو دلته دهغه قیمت ددغه ځای سره سم باید اداء شي اوکه دهغه ځای دقیمت سره سم ؟

ځواب : دهغه سرسایه دي په اعلی قسم غنمو سره ورکړله شي ، اویا دي دهغه ځای په حساب دغنمو قیمت ورکړي ، که هلته دغنمو قیمت زیات ؤ ، نوبیا دي ددغه ځای دقیمت سره سمه اداء کړي ، خوښه داده چي غنم ورکړي ، اوکه دغنمو قیمت ورکوي ، نوبیا یې باید په څه لوړ قیمت ولګوي چي پکښي دغریبانو لپاره ګټه وي. (فتاوی رحیمیه ۳ج ۱۱۳ مخ)

## دحضور ﷺ په زمانه کي به سرسایه څه وخت ورکوله کېدله ؟

پوښتنه : دحضور ﷺ په زمانه کي به سرسایه ترلمانځه له مخه ورکول کېدله او کنه ؟ اوکه به دځوورځو لپاره داټولېدله بیا به په محتاجانو

وېشله کېدله ؟ دلته دیوځای له مشر سره دسرسایې راټولول ضروري دي ، بیا چي کله دهغه مشر یا دهغه دځای ناستي خوښه شي هغه وخت یې بیا په محتاجانو وېشي ، ایا داسي کول صحیح دي اوکنه ؟
ځواب :په درمختار کي دغه بیان راغلی دی چي لنډیز یې دادی چي صدقة الفطر تر لمانځه دعید له مخه اداء کول مستحب دی ، دحضور ﷺ دحکم اوعمل سره سم ، څرنګه چي په مشکوة شریف کي دعبدالله بن عمر ﷺ روایت دی چي حضوراقدس ﷺ دعید ترلمانځه له مخه دسرسایې ورکولو حکم فرمایلی دی ، نو له دې څخه معلومه شوه چي دغه مشران چي څه کوي هغه دسنتو خلاف اوبې اساسه وي
.(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۰۳ بحواله مشکوة شریف ۱۶۰ مخ).

## ایا سید ته سرسایه ورکول کېدای شي ؟

فتوی په دې قول ده چي سیدانو ته په دغه زمانه کي هم دزکات او واجبو صدقو لکه پوستو کي ، قرباني اوصدقې او نورو ورکول حرام دي اوپه ورکولو سره یې اداء نه ده شوې په(فتاوی رحیمیه ۵ج ۱۶۹ مخ ، ۳ج ۱۷۰ مخ) کي راغي چي سید ته دزکات اوعشر روپۍ یاغله ورکول صحیح نه دی ، خو دورکولو لپاره یې په حیله جوړولو کي څه منع نشته ، دحیلې صورة داسي دی چي بل مسکین ته داوویل شي چي مابه دغه فلاني ته ورکاؤ خو هغه سید دی ، نوځکه ورباندي زکات نه وزي ، نو زه دغه تاته درکوم که ته ټول اویا لږ هغه ته له خپله طرفه ورکړې دابه ډیره ښه وي .
(بحواله کفایت المفتی ۲۷۲ مخ)

## دسرسايې دويشلو طريقه

که يوڅوك خپله ټوله سرسايه يونفرته ورکوي هم سمه ده ، اوکه لږ لږ ځونفرو ته ورکوي هم صحيح دی ، همدارنګه که ډيرو خلګو سرسايه يونفر مسکين ته ورکړله شي هم صحيح ده ، په حاشيه کي ليکل شوي دی چي ددومره خلګو سرسايه يومسکين ته ورکول صحيح نه دی چي هغه ټوله دزکات ترنصابه يا دسرسايې ترنصابه ورسيږي ، دومره سرسايه يوه مسکين ته ورکول مکروه دی ، همدارنګه دسرسايې حقدار اومستحق هغه څوك دی کوم چي دزکات مستحق دی ، همدارنګه په حاشيه کي ليکل شوي دی چي غير مسلم ته هم سرسايه ورکول روا دي ، خو زکات ورکول روانه دی .

(بهشتی زیور ۳ حصه ۳۶ فتاوی هندیه ۱ج ۱۹۱ مخ).

## دسرسايې په روپو دمدرسې لپاره ځمکه اخستل

پوښتنه : يوه اداره دجماعت سره په پيوسته ځمکي باندي دکوچنيانو لپاره ديني مدرسه جوړول غواړي ، دلته تردغه وخته دماشومانو دتعليم لپاره کوم سم تياري اوبندوبست نه ؤ ايا دسرسايې روپۍ ددغي ځمکي په اخستلو کي لګول کېدای شي اوکنه ؟

ځواب : دسرسايې حکم دادی چي دوړوکي عيد په ورځ ترلمانځه له مخه بايد اداء کړل شي ، اوتردې له مخه اداء کول يې هم روا دی که چا په دغه وخت کي ادانه کړه ، نو دژر اداء کولو په فکر کي دي شي ، سرسايه کله هم معاف کېږي نه ، ددغه حکم سره سره لتاسو سره

دسرسايې ډيري روپۍ ولي راټولي شوې پاته دي ؟ دادتعجب اوافسوس خبره ده ، اوکه له تاسو سره نه اوس په مالي لحاظ دمدرسې جوړولو اوقابليت وي اونه يې په نزدې راتلونکي کې توقع وي ، نو هغو روپو ته په حيلې جوړولو سره دمدرسې لپاره ځای اخستل ، کېدای شي بغير له حالته دمجبوري اوبغير له څه شرعي عذره که حيله جوړه کړي نو هم په دغوروپو دځمکې اخستلو اجازه نشته دسرسايې اصلي حقدار محتاجان اومسکينان دي ، په داسې کاروکې دهغو حق ضائع کېږي. (فتاوی رحيميه ۵ج ۱۷۸ مخ)

## دسرسايې روپۍ دقرضدارپه قرضوکې لګول

پوښتنه : ديوچا په بل چاباندې قرض باندې دي ، اوهغه مديون (پوروړکړل شوی ) مسکين اوبې وسه دي ، نوکه قرض ورکونکې خپله سرسايه په داسې ډول وروګرزوي چې هغه مديون ته ووايې چې دغه دسرسايې روپۍ به ستا په پور کې راواخلم ، نوآيا دهغه سرسايه به اداء شوې وي اوکنه ؟

ځواب :په داسې ډول سرسايه نه ده اداء شوې ، بغير له دې چې مسکين ته ورکړل شي ، په قرضو کې يې په لګولو سره زکات اوسرسايه نه اداء کېږي ، قرض هم پکښې وصول کولای شي مګر ورکول يې ضروري دی (فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۰۳ بحواله ردالمحتار ۱ج ۸۵ مخ).

## دجماعت امام ته سرسايه ورکول

پوښتنه : دمسجد امام ته سرسايه ورکول روا دی اوکنه ؟

ځواب : دامامت په وجه هغه ته سرسايه ورکول روانه دي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۲۸ مخ)

**څوک چې پېشلمي ته خلگ راپورته کوي هغه ته سرسایه ورکول**

سرسایه هغه چاته ورکول چې په پېشلمي دخلگو دراپورته کولو لپاره تاکل شوی وي روا دی ، خوښه داده چې سرسایه دهغه لپاره دهغه دکار اجرت ونه گرزول شي ، بلکه دکار په بدله کي هغه ته نورڅه ورکړي ، اوبیا ورته دسرسایې مال هم ورکړي . (علم الفقه ۴حصه ۵۴ مخ)

**نابالغ ته دسرسایې ورکول**

پوښتنه مسکین ،غریب اویتیم نابالغ ته سرسایه ورکول جواز لري اوکنه ؟

ځواب : که مسکین نابالغ ؤ نو هغه ته سرسایه ورکول روانه دی ،مگر دهغه سرپرست ته یې ورکول روا دی ، خو که هغه نابالغ عاقل ؤ ، نوبیا پخپله هغه ته هم دسرسایې ورکول روادي ، اوکه هغه یتیم نابالغ شتمن وی نو په هیڅ ډول هم ورته سرسایه ورکول روانه دی .

(فتاوی محمودیه ۲ج ۲۶۹ مخ)

**که یوځای غریبان نه ؤ هلته بیا سرسایه څه وخت اداء کړي ؟**

پوښتنه : که په کوم هیواد یاسیمه کي غریبان نه ؤ ، نوکه دهغه ځای خلگ دوړو کي عید په ورځ ترلمانځه له مخه دسرسایې روپۍ راټولي کړي اویایې یو باوري نفرته ورکړي چې هغه یې بیا بل وخت دکوم بل ځای غریبانو ته وروليږي ، نوآیا په دې سره به مستحب اداء شي ؟

ځواب :سرسایه ترلمانځه دعید له مخه محتاجانو ته ورکول مستحب دی ، نو په دغه صورت کي چي سرسایه تر لمانځه دعید له مخه راټوله کړله شي خومحتاجانو ته ونه رسوله شي ، نوپه دې سره مستحب نه اداء کيږي ، اودعادت له مخي دهر ځله داسي نشي کېدای چي په کوم ځای کي دي فقراء اومحتاجان نه وي ، خوکه بيا هم وشي ، نوبيا بايد دبل ځای مسکينانو ته هغه ولېږل شي ، اودعذر په وجه هغه سړی ته پرېښودونکی دمستحبو نه ويل کېږي .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۱۷ مخ بحواله عالمگیری مصری ۱ج ۱۸۰ مخ)

## ايا بنديان په مسکينانو کي شمېرل کېږي ؟

پوښتنه : دلته له قيديانو بغير بل څوك مسکين نشته ، آيا دوی په مسکينانو کي ګڼل کېږي ، اوسرسايه ورته ورکول کېدای شي ؟

ځواب : کله چي له دوی سره دنصاب په اندازه مال نه وي ، نو دوی مسکينان دی اوسرسايه ورکول صحيح دی .

(فتاوی دارالعلوم ۶ج ۳۱۲ مخ بحواله درمختار ۲ج ۷۹ مخ)

## که په ډاګ کي نه لېږل شوې سرسايه ونه رسېږي ، نوبيا به يې اداء کوي ؟

پوښتنه : زيد دسرسايې روپۍ درجسترډ له لاري يتيم خانې ته ولېږلې ، هلته ناظم صاحب ته خط راغی چي رجسټري راورسېدله خوروپۍ پکښي نشته ، نو زيد به بيا له سره سرسايه اداء کوي او کنه؟

ځواب : په دغه صورت کي دلېږونکي زکات یا سرسایه نه ده اداء شوې ، ځکه چي ډاکخانه خودلېږونکي وکالت کوي ، دهغه چا وکیله خونه ده چاته چي دغه سرسایه ورلېږله شوې ده . (کفایت المفتی ۴ج ۲۷۹ مخ)

**یوه ارزو!**

دکتاب په اخېر کي زما هیله له درنو کتونکو څخه داده چي درمضان المبارك په هروخت کي چي تاسو دځان لپاره دعاګاني کوئ ، نو دکتاب جوړونکی اودهغه مور اوپلار هم درسره په دعاء یاد کړئ ، لیري نه ده چي ستاسوداخلاصو ډکو دعاګانو سره مهربان خدای تعالی زمامور اوپلار ته مغفرت وکړي ، اوپه مابانديدحسن خاتمې رحم وکړي ؟

محمدرفعت قاسمي

مدرس دارالعلوم دیوبند

نېټه ۱۴۰۷ هج مطابق ۱۹۸۷ ع

ستاسوتبولودعامحتاج ابوخالدمولوی عبدالاحد«مجروح»

دهجرت مینه پښتون ابادکوټه

۲۰۰۸ میلادی کال

دجولایي میاشت